# لېونۍ سندرې

لائق زاده لائق



دا چې دومره ضد کوې، ځان له مانه بېلوې
لږ د زړه نه تپوس وکه، ما به څنګه هېروې

# لېونۍ سندرې

(شعري مجموعه)

## لايق زاده لايق

قيصـــه د لېونتوب مـــــې ځکـــه پټه پاتې نشوه
چې مينه لېونۍ شوه، نو "سندرې لېونۍ" شوې



## دغه کتاب


نوم : *لېونۍ سندرې*

ليکوال : لايق زاده لايق

چاپ کال : **2007** اګست

شمېر : **1000** (يو زر)

کمپوزينګ : ذبيح شفق

خوروونکی : د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور

چاپونکی : ضيا سنز پرنټرز، پېښور. فون **2580176**

بيه : مجلد ( **130**) روپۍ

غير مجلد (**100**) روپۍ


## د موندلو درکونه:

- يونيورسټي بك ايجنسي، خيبر بازار، پېښور
- دانش کتابتون، ډهکی نعلبندي، قصه خواني بازار پېښور

او ددې ترڅنګه:

- د کتابونو ټول لوئ دوکانونه



زه دا خپلې "لېونۍ سندرې" د لوئې پښتونخوا د لوی لیکوال ښاغلي کبیر ستوری
زوی ښاغلي نصیر خان ستوري ته ډالۍ کوم. هاغه نصیر خان ستوري ته لکه چې
د نورو وروڼو ورته د پښتو، ننګ او غېرت پالنه د عظیم پلار نه په میراث کښې
پاتې ده.

"لایق زاده لایق"

# زه هغه پېژنم

هغه د خپلې مور کشرے زوے و، ځکه نو ډېر نیازبین وو. په وړه وړه خبره به مرور شو او تر هاغې به نه پخلا کېدو چې ترڅو به ئې ضد پوره شوئے نه وو، خو مور ئې د لوئے کور ښځه وه، هغه به د خپل بچي په ټولو معصومو جذبو پوهېده. زر به ئې ځان ته راجوخت کړو، د مور د غېږې تودوالي به هغه ټکور ټکور کړو. هغه به په مینه مینه د خپلې مور سترګو ته وکتل، مور به په دواړه مخه ښکل کړو او دغه رنګ به معصوم ضد په خندا کښې بدل شو.

هغه چې کله وړمے قدم اخیستو، نو مور ئې ډېره زیاته خوشحاله وه، په ټول کلي کښې ئې "خواږه ککوړي" وېشل. د هغوی په کور کښې "اجمینه ترور"، "موتې ترور" ګرمې ګرمې ګرځېدې او "زر بي بي ترور" خو به ورکښې د خوشحالئ نه چورلکونه اوخوړل، ځکه چې د مودو مودو راسې ئې ددغه کور نمك خوړلے وو. د زنانه و ترڅنګه په کور کښې کارکوونکي سړي هم خوشحاله وو. "دراني کاکا" چم ګاونډ ته زېري وړل او "ګل بشر کاکا" خپل "ماشوم نائیك" په اوږه اخیستے وو. د هغه مور د "مور پنډئ بابا" لور وه، د باباخېلو د کورنئ دغه حیا په خپل خاوند ډېره ګرانه وه، ځکه چې که یو خوا ئې د ژوند ملګرې وه، نو بل خوا ئې د خپل سکه ماما لور وه. په ټول کلي کښې دا خبر خورېدو چې د مورپنډئ د بابا ممسي وړمبے قدم اخیستے دے.

او بیا چې کله دغه قدم په منډو کښې بدل شو، نو هغه به په لارو کوڅو کښې د ملګرو سره لوبې کولې، د خپل مزاج ترمخه به ئې هره خبره خپل حق ګڼلو، ملګرو ته ئې د پلار خوي هم معلوم و او د مور غصه هم، ځکه نو د هغه نازونه به ئې وړل. هغه به کله کله ټول ملګري راغونډ کړل کور ته به یې راوستل. په مور ئې د خپل زوی ملګري ګران وو، ګرمې ګرمې پراټې به یې ورته پخولې او دغه رنګ د غرونو په لمن کښې دغه ساده باده مینې د اظهار نوي چلونه زده کول.

هغه چې د پېنځهٔ کالو شو، نو مور ئې د نري رنځ بیماره شوه. په دغه ورځو شپو کښې د نري رنځ علاج نه و، چې څنګه وختو نو اړخونه بدلول نو د هغې ناروغتیا سېوا کېده او چې د بیمارئ په حال کښې به ئې خپل ماشوم زوي ته وکتل، نو په سترګو کښې به ئې غټې غټې اوښکې راغلې. هغه به ورته په معصومه ژبه اووئے:" مورې ته خو ژاړې دا ولې؟" مور به ورته سلګو اونیوه ورته به ئې اووئے:" ما خو نه دي ژړلي" ددې سره به ئې اوښکې پټې کړې، خو د هغې په مخ به دا خبره واضحه لوستے کېده، چې هغه په ژوند نور اتبار نه لري او د نیازبین زوی د سبا غم ئې نوره هم زوروي. ډلې ډلې خلق د هغې پوښتنې له راتلل، په کور د غم لړې راخورېدې او بیا... او بیا چې یوه ورځ هغه د کور نه باهر د خپلو ملګرو سره لوبې کولې، نو وئې کتل چې هرڅوك د هغوی کور ته منډې وهي. هغه وارخطا شو، لوبې ئې پرېښودې، په منډه منډه کور ته ورغے. په کور کښې د چم ګاونډ ښځې جمع وې، هغه چغې کړې "مورې" او بیا چې د مور کټ ته ورغے، نو مور ورته په

اخري نظر اوکتل، بچی ورته آوازونه کول، خو د مور په خوله ئې ځواب نه راتلو. هغې خپل بچي ته کتل، په سترګو کښې ئې اوښکې الول کېدې، هغه بې اختیاره د مور په سینه سر کېښودو او چې مور ئې په سر لاس راښکو، نو بیا د مینې دغه مزی شلېدلی وو.

هغه د کلی هرې ښځې ته په سلګو سلګو وئیل، چې زما مور خبرې ولې نه کوي؟ خو چا هم هغه له جواب نشو ورکولے. په ټول کلي کښې خبر خور شو، چې د "مور پنډي بابا" لور مړه شوه.

د مور د مرګ نه پس به هغه یواځې یواځې ناست وو، مشر ورور او خور به چې ورته څه خبره اوکړه، نو هغه به په ژړا ګوتې پورې کړې او په ژړا کښې به ئې وئیل، چې "زما مور وے نو اوس به ئې تاسو برابر کړې وئے." ددې سره به هغوی هم سلګو اونیول، خو په خوله ئې هېڅ نشو وئیلے.

د هغه پلار به چې کور ته راغے او د خپلې مینې دغه جاله به ئې تاله واله اولیده، نو غریو به اونیوو. په خوله بۀ ئې څه اونه وئیل خپل درې واړه یتیمان به ئې سینې ته راجوخت کړل او چې کله به ئې برداشت اونکړے شو، نو په بق بق به ئې وژړل. هغه به ځان د پلار په سینه پورې جوخت کړے وو او د پلار په مخ به ئې اوښکې لړې لړې کېدې.

هوښیاران وائي، چې وخت د هرڅه نه ښه معالج دے، زخمونو خولې ورکولې او فطرت پرې د صبر پهې لګولې. هغه یو ځل بیا د ژوند په رنګونو کښې ورك شو، د خپلو ملګرو سره ئې لوبې شروع کړې او بیا چې کله پلار په سکول
کښې داخل کړو، نو د هغو د کتابونو سره نه لګېده.
دکوره نه به د سکول په بهانه اووتو او ټوله ورځ به یا لینده په لاس په مقبرو کښې ګرځېدو او یا به ئې د سیند په غاړه ټوله ورځ تېره کړه.

یوه ورځ لینده په لاس په مقبره کښې په مرغو پسې ګرځېدو چې ناڅاپې ورله چا په مخ یوه درنه څپېړه ورکړه. د هغه په سترګو تیاره خوره شوه، خو چې کله ئې مخامخ اوکتل، نو هلته د سکول هېډ ماسټر حضرت احمد ولاړ وو. د هغه په مرۍ کښې ژړا اونخته او د هاغه ځائے نه ئې منډې کړې.

د سکول نه پټېدل د هغه معمول وو، خو د "حضرت احمد" هېډ ماسټر څپېړې د هغه سره وېره ملګرې کړه او بیا چې کله پینځم ته اورسېدو، نو د ژمي د چهټیانو کار ترې هېر وو. چټهټیانې پوره شوې، ملګرې ئې سکول ته روان شول او هغه پلار ته بهانې شروع کړې. کله د خېټې د درد بهانه، کله د سر د درد بهانه او کله نور څه او چې کله ئې پلار په چالاکۍ پوهه شو، نو په زور ئې سکول ته بوتلو او استاد ته ئې حواله کړو.

په دغه ورځو شپو کښې استاذان د بچو په تربیت هم پوهېدل او د هغوی په لارخودنه کښې ئې د چل ول نه کار هم نه اخیستو، ځکه نو هغه ته داسې زبردسته سزا ورکړه چې یو دوه ئې ترې خطا کړل.

اوس هغه پوهېدو چې کور کښې دې بهانې ختمې دي، نو په نره ئې سبق ته زړه ورکړو، چې څنګه څنګه د هغه سکول ته د تګ لارې ته راتلو، نو ورسره د هغه د سبق سره مینه سیوا کېده.

هغه به د خپلو ملګرو سره اوس د سبق خبرې کولې، چې څنګه څنګه ئې د ځوانۍ په درشل

قدم ايښودو، نو د خپل ناقراره فطرت احساس ورته کېدو. هغه چې چرته حُسن اوليدو، د زړه د تل نه ئې ورسره مينه اوکړه، ځکه چې د هغه په ذات کښې محرومې موجودې وې، هغه ددغه محرومو په تکميل پسې د هر چا سترګو ته کتل او هم دغه سترګې وې، چې ايله د څوارلسو کالو په عمر کښې ئې هغه ته د شعر ليکلو هنر اوښودو.

هغه به ګډوډ شعرونه اوليکل او چې ملګرو ته به ئې واورول نو هغوی به ورسره د لاسونو ټقا ملګرې کړه. دغه مينې هغه ته نوره حوصله ورکړه او دغه حوصلې ورته د نورو ښکلو سترګو د لټون لارې پرانستې. هغه څو څو ځله د ښائستونو په قيد کې بندي شو، خو د خپل ناقراره فطرت له وجې ئې کله هم په داسې قيدونو کښې زيات وخت تېر نه کړو او بيا چې کله هغه لسم پاس کولو نو شاعرې ئې ځوانه شوې وه. د سکول نه پس کالج او د کالج نه پس يونيورستئ هغه ته د ژوند ډېر رنګونه اوښودل. هغه به چې څنګه د کاميابئ په نوي درشل قدم کېښودو، نو پلار به ورته اول خوشحاله شو او بيا به ئې ورته په سترګو کښې اوښکې راغلې. هغه به ورته اووئې" دا دا ستاسو په سترګو کښې هر وخت داسې اوښکې ولې راځي؟" پلار به ورته صرف دومره اووئې، چې:"بچې که نن دې مور وے څومره به خوشحاله وه؟" د مور د نشست والي احساس به هغه هم غمجن کړو. خو، بيا به ئې زړه صبر کړو.

ژوند وړاندې لاړو، هغه د بچو پلار شو، د هغه ترجيحات بدل شول. د کاميابو ډېر لوے سفر ئې اوکړو. د شاعرئ غږ ئې ټول وطن ته اورسېدو، د مينې د قيصو نه ئې دنيا خبره شوه. لکه د پرون نن هم مينه کوي، د نورو د جذبو احترام خپل احترام ګڼي. د نفرتونو څخه کرکه کړې او چې کله ئې په ذهن باندې تېر وختونه رااوړېږي، د خپل کلي خړ کورونه، د خپل کلي چينې او چنارونه، د خپل کلي واورينې څوکې او د خپل کلي د سيند غورځنګونه، چې راياد کړي، نو په ذهن ئې سپرلي خواره شي. کله سندرې اوليکي او کله غزلې، په دغه هر ليک کښې د هغه د ناقراره فطرت هاغه ټولې جذبې ټپه ټپه کېږي، کومو چې هغه ته مينه ښودلې وه. هاغه ګلاب ګلاب ځوانې، هاغه ملالې ملالې سترګې، هاغه نشه نشه ښائستونه اوس هم د هغه د شعرونو سره لوبې کوي او چې کله ئې زړه اودرزوي، نو ورته وائي چې "شابه مونږ اوليکه"، "مونږ خوندي که" هغه دې هرڅه لېونۍ کړې دې، خو په دغه لېونتوب کښې ښه خوشحاله دے. زه ئې دومره قدر پېژنم چې نن پرون په ريډيو پاکستان کوهاټ کښې د ډاېرېکټر په حيث کار کوي.

د "هغـــه" د ژونـــــدون هـــره پاڼه لولم
خو له ځانه خبر نه شوم چې زه څوک يم؟

"ليکوال"

سپتمبر 2007

# زما "لېونۍ سندرې"

که هرڅو ما د ژوند ډېر پړاوونه اولیدل، خو لاتراوسه مې نظر تږے تږے دے. زه لا د ځان په لټون پسې ورك ورك ګرځم، زما دغه ورك لټون ماته په هر ګام د اظهار چلونه ښائي، خو زه نه پوهېږم چې ایا زما دغه بېځ ترتیبه لیکونه د شاعرۍ په چوکاټ کښې راځي او که نا؟

ما چې کله د خپلو احساساتو دغه برخه راغونډه کړه نو ورته مې د "ژوند سندرې" اووئے. که هرڅو راسره په دغه فیصله کښې عقل او شعور ملګرتیا کوله، خو لېونے زړه مې دې فیصلې منلو ته تیار نه وو، ځکه چې په دې سندرو کښې زما "لېونتوب" ټپه ټپه کېدو، چې کله مې د نورو ملګرو ترڅنګه خپل نازولي ملګري ساغر خان خټك ته دا ذکر اوکړو، نو هغه "د ژوند سندرې"، "لېونۍ سندرې" کړې. دا ځکه چې ساغر خان خټك په خپله لېونۍ سادګۍ کښې د ادراك په رموزو پوهه دے. دغه ادراك اوس هغه ددې جوګه کړے دے، چې په راتلونکو وختونو کښې به ورته خلق ډاکټر سعادت خان ساغر خټك اووائي.

"لېونۍ سندرې" څه دي؟ د ساده باده جذبو ساده باده اظهار دے. دغه اظهار له چې کله زما د پښتنې خاورې ننګیالو او پیاوړو هنرمندانو د خپلو آوازونو ښکلا ورکړه، نو بیا زه "زه" پاتې نشوم. هر چا اوپېژندم. دغه هر څه زما د شاعرۍ کمال نه دے، بلکې دا هرڅه زما د فن کارانو د اوازونو د هاغه زمزمو اهنګونه دي، چې په لر و بر کښې خورېږي. دې زمزمو که یو خوا زه "لایق" کړم نو بل خوا ئې زما د لېونتوب قیصه پټه پاتې نه کړه.

زما اورېدونکو، زما لوستونکو ماته احترام راکړو، زما "لېونتوب" ئې خوښ کړو او دغه ډاډ ماته د نورو لیکلو توان راکې. زه پوره اعتماد لرم چې لکه زما د نورو احساساتو په رنګ به تاسو زما "لېونۍ سندرې" د خپلې مینې په زور نورې هم لېونۍ کړئ.

د خپلو ټولو مینه والو د نورې مینې په باور

لایق زاده لایق

ډایریکټر ریډیو پاکستان کوهاټ
سپتمبر 2007
رابطه: 0334-8267377

# اعتراف

ښايېږي عظمتونه صفتونه واړه تاله
خالقه ذوالجلاله ، خالقه ذوالجلاله
رازق د مخلوقاتو ې بې شکه با کماله
خالقه ذوالجلاله، خالقه ذوالجلاله

قربان د له نام شم په هرڅه کې یکتا ې
د خیال له هر یو حد نه زما ربه بالا ې
اشنا دې ښائیستونه کړه جلال کې له جماله
خالقه ذوالجلاله، خالقه ذوالجلاله

دا واړه کائینات دې ثنا وايي لګیا دی
په خپله خپله ژبه "الله" وايي لګیا دی
ښکاره د قدرتونه لور په لور دي بې مثاله
خالقه ذوالجلاله، خالقه ذوالجلاله

ټول ستا نه مدد غواړي نبي دے که ولي دے
بادشاه ې لویه خدایه هر شان د ازلي دے
لمن د رحمتونو د خوره ده لازواله
خالقه ذوالجلاله، خالقه ذوالجلاله

لایق به دې څه ستايي حمدونه دې بسیار دي
احده په یو ذات کې رنګونه دې بسیار دي
پکار مې نور څه نه دي خپله مینه راکه ماله
خالقه ذوالجلاله، خالقه ذوالجلاله

"جل جلا له"

# راز

چې غمونه دې سیوا شي نو بس صلی علی وایه
چې تکلیف درباند راشي نو بس صل علی وایه

مایوسي چې دې په ذهن کله کله راخوره شي
چې شکونه ګمانونه غلي غلي درسره شي
چې دې وار کله خطا شي نو بس صلی عل وایه
چې تکلیف درباند راشي نو بس صل علی وایه

چې راپېښې درته کله لوئې لوئې حوصلې شي
چې په ژوند درته ګرانې د وختونو فیصلې شي
چې دې ساه کله بې ساه شي نو بس صلی علی وایه
چې تکلیف دربانديې راشي نو بس صلی علی وایه

چې سوځېږې کله کله د حالاتو په لمبو کې
پرېشانه پرېشانه هر خوا ګورې په سلګو کې
چې ملګرې دې سودا شي نو بس صلی علی وایه
چې تکلیف دربانديې راشي نو بس صلی علی وایه

دا د هر یو غم علاج دی دا د هر زخم ټکور دی
دا د هر یو روح قرار دی دا د د واړه جذبو شور دی
چې لایقه خوله د وا شي نو بس صلی علی وایه
چې تکلیف دربانديې راشي نو بس صلی علی وایه

"صلو علیه واله"

# تکمیل

ښائیست د ښائستونو دے رښتیا علي علي
نیازبین د محمد رسول الله علي علي

تیتېږي ئې عظمت له ازله اسمانونه
پوره ئې شي په ذکر ټول نیمګړي مرادونه
همت ته ئې پسخېږي د ننګیالو غېرتونه

اقا د امامانو دے اقا علي علي
نیازبین د محمد رسول الله علي علي

چې کړے ئې په چا باندې یو ځلې خپل نظر دے
ګڼلے ئې نامه چې په نړۍ کې معتبر دے
وجود ئې سر ترپایه دنازونو سمندر دے

شیندي محبتونه په هر خوا علي علي
نیازبین د محمد رسول الله علي علي

په دغه محبت کې راز د بندګۍ دے
دلیل د زندګے دے هم جواز د بندګے دے
که ناز د زندګۍ دے نیاز د بندګۍ دے

تکمیل د هر یو ذکر دے مولا علي علي
نیازبین د محمد رسول الله علي علي

ځیلے که حالاتو ډیر لایقه ګام په ګام یم
عاجز یمه مسکین یم ددغه در غلام یم

ولاړ په احترام وومه ولاړ په احترام يم

يادومه تل په مينه خپل اقا علي علي
نيازبين د محمد رسول الله علي علي

## تعــبير

په هر قدم زه وسعتونه د عرفان لټووم
هر تصور کې تصويرونه د جانان لټووم

ما د "بابا عبدالرحمان" نه قناعت زده کړے
ما د "خوشال بابا" د فکر نه غېرت زده کړے
ما د "حميد بابا" د خيال نه نزاکت زده کړے
د "علي خان" نه مې اظهار د محبت زده کړے

زه په مکان کې فلسفې د لامکان لټووم
هر تصور کې تصويرونه د جانان لټووم

ما د "حمزه" نه فلسفې د دلدارۍ زده کړې
د "قلندر" نه مې قيصه د خوددارې زده کړې
د "سمندر" نه مې ټپه د بېدارۍ زده کړې
ما د "خاطر" نه رنګينې د شاعرې زده کړې

زه په مجاز کې تدبيرونه د وجدان لټووم
هر تصور کې تصويرونه د جانان لټووم

ما د "سايل" نه د احساس نزاکتونه زده کړه
ما د "مجذوب" نه د خوبونو تعبيرونه زده کړه

د "غازي سيال" نه مې د حُسن تفسيرونه زده کړه
ما د "اندېش" نه د ژوندون حقيقتونه زده کړه

د "ګران" وينا د جذباتو دبستان لټووم
هر تصور کې تصويرونه د جانان لټووم

هرڅه مې زده کړه خو له ځانه زه خبر نه شومه
لمبه لمبه شومه اېره شومه سره زر نشومه
پاتې کونجکه شوم ارمان دے چې ګوهر نشومه
چې لايق نه شومه نو ستا د زړګي سر نشومه

لا په منزل پسې خاپونه د "کاروان" لټووم
هر تصور کې تصويرونه د جانان لټووم

## کربنې

زه شاعر يم ستا خندا مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

ته چې مخ له مانه واړوې خفه شې
ماته نۀ ګورې د ځان سره غصه شې
تانه ځار شمه همدا مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

کله کله چې ما اووينې شرمېږې
وارخطا شې په خبرو نه پوهېږې
دا پښتو او دا حيا مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

چې دې غواړم د مولانه په سلګو کې
د بېلتون په ناقراره تورو شپو کې
هر يو سوال هره دعا مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

چې دې کله لېوني لوظونه هېر شي
ګومانونه دې د حُسن نه چاپېر شي
لېونۍ دغه سودا مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

دا چې کړے مو لايقه محبت دے
نور څه نه دي ټول د زړونو برکت دے
ښه پوهېږمه هره ساه مې شاعري ده
ستا نازونه ستا ادا مې شاعري ده

## سوال

خير که زه خفه يم خو ياران دې خفه نشي
خدايه دا مې سوال دے يو انسان دې خفه نشي

نشته پروا نشته که په اور مې سوزوي مينه
ټوله ټوله شپه مې بې اختياره زوروي مينه
ما لکه ماشوم په چغو چغو ژړوي مينه

لا دې نور رسوا شم خو جانان دې خفه نشي
خدايه دا مې سوال دے يو انسان دې خفه نشي

زه دې په سلګو کې د چا سترګې یادوم مدام
زه دې چې خیالونو کې عکسونه جوړم مدام
زه دې ټول وختونه په لمبو کې تېروم مدام

هر څه قبلووم خو دوران دې خفه نشي
خدایه دا مې سوال دے یو انسان دې خفه نشي

زه په لېوني زړګي لانور ستم کولے شم
لاخو ډېر دردونه په خندا باندې زغملے شم
لاخو طوفانونه په سینه کې ځایولے شم

لادې نور کړېږم خو جهان دې خفه نشي
خدایه دا مې سوال دے یو انسان دې خفه نشي

کله مې لایقه خوري هر دم د عاشقانو غم
کله راسره شي ټوله شپه د رقیبانو غم
کله د بې کوره کړېدلو ملنګانو غم

واړه مئینان دې مئینان دې خفه نشي
خدایه دا مې سوال دے یو انسان دې خفه نشي

## لټون

هاغه حجرې هاغه ګودر څه شو
څه شوې میلې هاغه اختر څه شو

چې فرشتو به ئې تماشه کولې
چې ښائېستونو به ئې قیصې کولې
هاغه د کلیو مازیګر څه شو
څه شوې میلې هاغه اختر څه شو

چې سادګي حېرانېدله ورته
چې زندګي به پسخېدله ورته
هاغه ټپه ټپه منظر څه شو
څه شوې میلې هاغه اختر څه شو

هاغه خړ پړ کچه کچه کورونه
کړې کوڅې ساده ساده کورونه
هاغه "اتڼ" هاغه "اشر" څه شو
څه شوې میلې هاغه اختر څه شو

داسې تاله واله کړم چا "لایقه"
ولې شوم داسې د خندا "لایقه"
څه شوه پښتو هاغه سنګر شو
څه شوې میلې هاغه اختر څه شو.

# بدبختي

په یو کور کې اوسېږو خو د یو بل نه پردي یو

مونږ ځومره لېوني یو

لوبېږو د بل لاس کې د اغیارو ګوډاګي یو

مونږ ځومره لېوني یو

بې سوچه بې دلیله یو بل په کاڼو ولو

د نورو په یارۍ کې مونږ خپل په کاڼو ولو

په دام د نفرتونو کې پاخه پاخه بندي یو

مونږ ځومره لېوني یو

په غټو غټو ګورو "پښتو" مو سر توربړي

وجود مو تاله کېږي خاپونه مو ورانېږي

خو بیا هم نه وینېږو بې عمله "مېړني" یو

مونږ ځومره لېوني یو

منزل رانه خطا دے روان یُو په تیارو کې

احساس راسره نشته سوځېږو په لمبو کې

په تشو ګمانونو باندې ساه اخلو ژوندي یو

مونږ ځومره لېوني یو

هله به د سیالۍ شو چې کور زمونږه یو شي

چې یو مو "انغرے" شي چې "شکور" زمونږه یو شي

"لایقه" که بېل بېل یو خو د یو نیکه بچي یو

مونږ ځومره لېوني یو

# لر و بر

"کابل" که "پېښور" دے "زابل" که "اشنغر" دے
دا واړه په ما ګران دي "تیراه" دے که خیبر دے

"مردان" دے که "نوښار" دے "کونړ" که "ننګرهار" دے
که "سوات" که "هزاره" ده "هرات" که "قندهار" دے
"کوهاټ" که"میران شاه" دے "هلمند" دے که "تخار" دے
زما د مینې کور دے "بولان" که "لواغر" دے
دا واړه په ما ګران دي "تیراه" دے که خیبر دے

که "ژوب" دے که "پشین" دے د خپل تاریخ امین دے
"قندوز" دے که "لغمان" دے په مینه کې رښتین دے
"چمن" دے او که "کوېټه" پرې خیال زما رنګین دے
"وانه" ده او که "ټانك" دے زما د زړګي سر دے
دا واړه په ما ګران دي "تیراه" دے که خیبر دے

"پغمان" دے او که "دیر" دے زما د خیال تعبیر دے
"چترال" دے که "پکتیا" ده ښائیست یې بې نظیر دے
لېمو کې مې غړېږي د "بنو" خپل تصویر دے
د "کرك" خورې دشتې خپل حُسن سراسر دے
دا واړه په ما ګران دي "تیراه" دے که خیبر دے

هر خوا دې وي اباده چې چرته پښتانه دي
د لوئې بابا نمسي دي له هر چا نه درانه دي
"لایقه" ننګیالي دي زما دي د چا نه دي
د مینې علامت دے حجره ده که ګودر دے
دا واړه په ما ګران دي "تیراه" دے که خیبر دے

# شملې

په ما له خپله ځانه ګران دي "اورکزي" پښتانه
خوارۀ خوارۀ راباندې لګي "يوسفزي" پښتانه

جګې دې اوسي همېشه د "خټکانو" شملې
د غېرتيانو، ننګيالو او باتورانو شملې
د چا نه کم نه دي غېرت کې "اپريدي" پښتانه
خوارۀ خوارۀ راباندې لګي "يوسفزي" پښتانه

که دي "خليل" او که "مومند" د سيالو سيال نه لري
زما "شينواري" هم په مينه کې مثال نه لري
درانه درانه دي "سدوزي" او "احمدزي" پښتانه
خوارۀ خوارۀ راباندې لګي "يوسفزي" پښتانه

که "بېټنيان" دي که "مروت" دي که "داوړ" ننګيالي
که "مندوخېل" دي که "کاسيان: دي همه "لوړ" ننګيالي
"وزير" مې خوښ دي هم مې خوښ دي "بنوسي" پښتانه
خوارۀ خوارۀ راباندې لګي "يوسفزي" پښتانه

واړه قامونه چې پراته دي د بابا په وطن
تا له واله "لايقه" دلته کې زما په وطن
اباد دې اوسي ټول ښاغلي توريالي پښتانه
خوارۀ خوارۀ راباندې لګي "يوسفزي" پښتانه

# خیبر

دغه "خیبر" دے دا دره د ننګیالو خاوره ده
دا د خودسره سربازانو توریالو خاوره ده

په دغه کاڼو کې زمونږه د غیرت نښې دي
قدم قدم د لوړ همت او شجاعت نښې دي
دا د "میرویس" د "احمدشاه" د میړنو خاوره ده
دا د خودسره سربازانو توریالو خاوره ده

په دغه لاره ډیر غاوره سرداران راغلي
کفن په سر باندې سرتېري باتوران راغلي
دا د تاریخ د لویو لویو جنګیالو خاوره ده
دا د خودسره سربازانو توریالو خاوره ده

دلته په هره سادګي کښې وفا لاډیره ده
دلته د مینې په جذبو کې حیا لاډیره ده
دغه د حُسن د رنګونو د سیالو خاوره ده
دا د خودسره سربازانو توریالو خاوره ده

په دغه خاوره اغیار کله بلوسېدلے نه شي
دغه عظمت ته عظمتونه رسېدلے نه شي
"لایقه" دا د باوقاره "پښتنو" خاوره ده
دا د خودسره سربازانو توریالو خاوره ده

# احساس

دلته د ژوند هر یو مازیگر نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

دلته خواره شوي هر طرف ته نفرتونه دي
دلته کې ده وېره، دښمني ده، وحشتونه دي
دلته کې ډاکې دي فرېبونه دي قتلونه دي

وینې وینې پروت دے برابر نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

دلته یتیمان په بازارونو کې نهر گرځي
دلته په انصاف پسې بې وسه در په در گرځي
دلته کې وحشیان په رڼا ورځې بې خطر گرځي

شپې سلگو نیولي دي، سحر نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

دلته په هر مخ ده پُراسراره خاموشي خوره
دلته په هر زړه ده ناقراره مایوسي خوره
دلته په هر ذهن د مُودو نه بې حسي خوره

سوچ نظره شوے دے، "نظر" نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

اوس هاغه خوندونه د "تهکال" او "کابلۍ" نشته
نه د "صدر" خوند شته هم مزه د "لاهورۍ" نشته
شته "قیصه خوانۍ" خو اوس یې هاغه رنگینۍ نشته

"کېنټ" نظره شوے، "کهېنه ګهر" نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

نه هاغه یاران شته نه حجرې نه محفلونه شته
نه د جونو ټپل شته نه میلې نه ګودرونه شته
نه چرته شوخي چرته مستي نه اتڼونه شته

دلته د رنګونو هر "منظر" نظره شوے دے
داسې معلومېږي "پېښور" نظره شوے دے

دا د "عابد جان[1]" او د "سایل[2]" د ارمانونو ښار
دا د شنو خالونو، لوپټو او اوربلونو ښار
دا د پسرلو، محبتونو او ګلونو ښار

پوهه یم "لایقه" سراسر نظره شوے دے
داسې معلومېږي پېښور نظره شوے دے

---

۱ ـ ښاغلی فضل سبحان عابد
۲ ـ ښاغلی رحمت شاه سایل

# عقیدت

دا مې دعا ده خدائې دې مکړه له نظره
زما نیازبینه پېښوره
په ما خوږه لګي دا ستا هره سندره
زما نیازبینه پېښوره

چې کله ستړے ستړے راشم
دا ستا په غېږه کې دمه شم
ستا په ګردونو او لوګو کې
په غزېدلو پښو اوده شم
لکه د مور دې مینه ډېره زوروره
زما نیازبینه پېښوره

مانه دے خپل کلے هېر شوے
چې ستا لمن ته یم راغلے
ما دې ښائیست تل په ټپو کې

د زړګي سره دے ستائیلے
ته ځومره خوږ یې د رنګونو جادوګره
زما نیازبینه پېښوره

ستا په خوره وره سینه کې
زما ځواني په نغمو سر ده
هره زره دې په ما ګرانه
د تاریخونو نه خبر ده
زه دې "لایق" یم زما جان زما ځیګره
زما نیازبینه پېښوره

# د مور د خط ځواب

زما نیازبینې نازولې مورې
د وخت بادونو زورولې مورې
یوه لحظه دې هېرولے نه شم
زړه کې مې اوسې زما ښکلې مورې

تا که زما مسافري ژړوي
ما هم دا خپله بې وسي ژړوي

زړه مې راډك شي چې بچې يادوم
د خپل وطن مازيګري يادوم
ناقراري مې لا سېوا شي مورې
چې د خپل کلي پسرلي يادوم

نه په روژه نه په اختر پوهه شوم
نه په سحر او مازيګر پوهه شوم
په سرو لمبو کې مې تېرېږي عمر
په اسوېلو کې مې بادېږي عمر
نه مې خندا نه مې ځواني اولیده
په مجبورو کې مې لوغړېږي عمر

زه چې نهر یم پښتونخوا څه کووم
د خود غرضو په دنیا څه کووم

چې شم يوازې په سلګو وژاړم
زه د تقدیر په فیصلو وژاړم
پردي وطن کې تر سحره پورې
غني مولا ته په ګيلو وژاړم

چې ته راياده شې دمه شم مورې
لکه ماشوم غلې اوده شم مورې

ما په دعا کې هر ماښام يادوه
مورې په مينه مې مدام يادوه
زړه چې له تا نه صبرولې نه شي
دا لېونې دې ګام په ګام يادوه

څو به ملګرې مې سودا وي مورې
څو به دا ستړې ژوند زما وي مورې

نور مې همت د جدايۍ نشته دے
راکې برداشت د تنهايۍ نشته دے
ستا په حيا مې دې قسم وي مورې
بې له تا خوند د زندګۍ نشته دے

دعا کوه چې بېرته بيا راشم
ستا "لايق" تا له په خندا راشم

# عبادت

داسې هر چا وئیلي ټولې دنیا وئیلي
هر یو پادري وئیلي پنډت ملا وئیلي
چې د ژوندون د نفرتونو نه نفرت مینه ده
بس عبادت مینه ده
مینه زوال نه لري نه لري سیال نه لري
چې محبت ونه کړي هډو جلال نه لري
د هر یو خوب د تعبیرونو حقیقت مینه ده
بس عبادت مینه ده
مینه اغاز د حُسن مینه دے راز د حُسن
دا د ښائیست فلسفه اصل جواز د حُسن
په کائیناتو کې د مینې "علامت" مینه ده
بس عبادت مینه ده
مینه سکون دے مینه مینه ژوندون دے مینه
هر یو انداز بدلوي داسې ترون دے مینه
ددې حالاتو په لمبو کې صداقت مینه ده
بس عبادت مینه ده
مینه ځلا د فکر مینه بقا د فکر
مینه قرار د ذهن مینه ښکلا د فکر
په لېونتوب کې د بخنې ضمانت مینه ده
بس عبادت مینه ده
راځه چې مینه اوکړو قیصه شیرینه اوکړو
دواړه یو بل ته اشنا خبره سپینه اوکړو
زما "لایقه" د وختونو ضرورت مینه ده
بس عبادت مینه ده

# زړه

نه پوهېدل پېژني　　　نه صبرېدل پېژني
په محبت کې په حساب نه په کتاب دے
زړګے زما خانه خراب دے

همېشه خپله کوي　　　د چا منت نه مني
ورسره څه اوکړمه　　　چې نصيحت نه مني
لېونے ژوند مې ترې ټول عمر په عذاب دے
زړګے زما خانه خراب دے

تا رانه غواړي اشنا　　　هر وخت ضدونه کوي
کله سلګو نيولے　　　کله دردونه کوي
ستا په يادونو کې چې شپه او ورځ غرقاب دے
زړګے زما خانه خراب دے

ما که په ډېره مينه　　　دده رضا کړې ده
خوده په ما پورې تل　　　ډېره خندا کړې ده
چې مې په دومره بې وسۍ کې هم نواب دے
زړګے زما خانه خراب دے

دا چې شاعر شومه زه　　　ټوله ګناه دده ده
چې محبت مې کړے　　　دغه سزا دده ده
"لايقه" پوهه چې د حُسن په شباب دے
زړګے زما خانه خراب دے

# بغــاوت

نه مو خطا کړې ده نه مو ګناه کړې ده
د هر رواج نه مو په نره بغاوت کړے دے
مــونږ مــحبت کـړے دے

زمـــونږ فــکرونه بــدل
زمـــونږ خیــالونه بــدل
زمـــونږ سوچــونه بــدل
په هر قدم مو د وفا په نوم غېرت کړے دے
مـونږ محبت کـــړے دے

یــوو بــې پــروا لــېوني
مــونږ د حیــا لېونـــي
مـــونـــږ د وفــا لېوني
په کاڼو زړونو مو بې تاجه حکومت کړے دے
مــونږ محبت کړے دے

مــونـــږ نـــازولې مینه
مــونـــږه پـــاللې میـــنه
ځــکه مـو ښکلې مینه
تل مو د ژوند د نفرتونو نه نفرت کړے دے
مـونږ محبت کړے دے

مـــونږ بـــه دوران یادوي
مـــونږ بـــه جهان یـادوي
مـونږ بـه یاران یادوي
"لایقه" ننګ مو د سرونو په قیمت کړے دے
مونږ محبت کـړے دے

# خواهش

په سترګو کې مې ځای کړه په لېمو کې مې اووده که
ډېر ستړے يم د زړه په درزېدو کې مې اووده که

ما تا پسې جانانه په سلګو سلګو ژړلي
تر نيمو نيمو شپو پورې مې ستا لارې څارلي
احساس کې مې ول ول که په جذبو کې مې اووده که
ډېر ستړے يم د زړه په درزېدو کې مې اووده که

دا خلق ټول د مينې د جذباتو قاتلان دي
زما او ستا د ګرمو احساساتو قاتلان دي
په اوښکو کې مې ځای که په سلګو کې مې اووده که
ډېر ستړے يم د زړه په درزېدو کې مې اووده که

ته ګوره د حالاتو سره اُورونه راپسې دي
تهمت په سر ولاړ دے پېغورونه راپسې دي
ما پټ که د ښائيست په پلوشو کې مې اووده که
ډېر ستړے يم د زړه په درزېدو کې مې اووده که

په هره يوه ساه کې مې ارمان ټپه ټپه که
سينه کې مې د مينې دا طوفان ټپه ټپه که
"لايق" مې د اوربل که زولنو کې مې اووده که
ډېر ستړے يم د زړه په درزېدو کې مې اووده که

# دُعـــا

زه به دعا کړم، ته هم دعا کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

پوهېږم ګرانه، دا جدايي ده
دا پېغورونه، دا رسوايي ده
پټ به ژړېږم، پټه ژړا کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

تا نه خبرېږم، سوځېږې هلته
زه هم يوازې، کړېږم دلته
صبر به کومه، صبر اشنا کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

ټوله شپه کېنم، په چغو ژاړم
تا په سلګو کې، له رب نه غواړم
مانه دې هېره، ټوله خندا کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

نه صبرېدے شې، نه صبرېدے شم
نه ته راتلے شې، نه زه درتلے شم
دے مجبورو مو، خُونه تباه کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

زه "لايق" ستا ووم، زه "لايق" ستا يم
نه بي وفا ووم، نه بې وفا يم
باور په تا کړم، باور په ما کړه
رب مې دې ستا کړي، رب دې زما کړه

# مازیګر

بیا لړې راخورېږي، پرېشانه مازیګر دے
زه ستا لارو ته ګورمه، جانانه مازیګر دے

د غرونو په سرونو، د نمر سترګه ډوبېږي
مارغان هم ډلې ډلې، ځي جالو ته ستنېږي
شکونه مې زیاتېږي، بدګمانه مازیګر دے
زه ستا لارو ته ګورمه، جانانه مازیګر دے

پټېږي ستا د کلي، کورونه په لوګو کې
ما دوه سترګې څلور کړې، څوك نه ښکاري کوڅو کې
خورېږي مایوُسیانې ورك له ځانه مازیګر دے
زه ستا لارو ته ګورمه، جانانه مازیګر دے

په مخ مې رېې اوښکې، قطار قطار بهېږي
بې صبره انتظار مې، په سترګو کې غړېږي
راځې به کله جانه بې عنوانه مازیګر دے
زه ستا لارې ته ګورمه، جانانه مازیګر دے

ما ټوله دنیا پرېښوه، په نره ستا دپاره
"لایقه" بیا هم پاتې، محروم یم له دیداره
ته ګوره څه بې کیفه، بې له تانه مازیګر دے
زه ستا لارو ته ګورمه جانانه مازیګر دے

# فاصلې

چې دې پاتې په ژړا کړم | تا د خلقو د خندا کړم
وايه کوم طرف ته لاړشم | په هر ځائې کې دې رسوا کړم

دا دې څه وکړه جانانه
دا دې څه وکړه جانانه

اوس د کلي په کوڅو کې | زما ستا خبرې کېږي
جوماتونو هم حجرو کې | څه بلا خبرې کېږي
هر څوك خپله خپله وايي | "تا اشنا" خبرې کېږي
د يارانو نه خبرېږم | "تاروا" خبرې کېږي
څه ګيله به د دنيا کړم | په هر ځائې کې دې رسوا کړم

دا دې څه وکړه جانانه
دا دې څه وکړه جانانه

ستا خبرې يادوومه | اوس مې بله سودا نشته
دا په ما چې څه تېرېږي | دې کې ځای د وينا نشته
مينې داسې لېونے کړم | په خپل ځان مې پروا نشته
وهم چغې داسې وايم | نشته چا کې وفا نشته
کله دا کړم کله دا کړم | په هر ځائې کې دې رسوا کړم

دا دې څه وکړه جانانه
دا دې څه وکړه جانانه

اوس د ژوند څه مزه نشته | بس خو شپې دې سبا کېږي
تنهايي مې د بدن نه | د لمبو شان چاپېرېږي
محلونه د ارمان مې | رانړېږي، راغورزېږي
بې صبري چې مې سېوا شي | ګُمانونه مې زياتېږي
تهمتونو دې تباه کړم | په هر ځائې کې دې رسوا کړم

دا دې څه وکړه جانانه
دا دې څه وکړه جانانه

زه چې داسې په سلګو يم | ته به هم نشې خوشحاله
ستا به هم خوبونه ورك شي | ته به هم ګرځې ملاله
څه به خوند څه به مزه وي | چې ستومانه راشې ماله

بل "لایق" به پیدا نه کړي　　　　که زړګے ورکړې هر چا له
که له ځانه دې جدا کړم　　　　خو بیا هم درته دعا کړم

دا دې څه وکړه جانانه
دا دې څه وکړه جانانه

## تنهایي

مازیګر چې نمر د غرونو پناه کېږي
بې خودي مې د احساس نه چاپېرېږي

تنهائي مې په ساګانو کې ول ول شي
ارمانونه مې په ساندو کې بدل شي
هر یو ګام د زندګۍ راته مقتل شي

امیدونه چې مې رو په رو خورېږي
بې خودي مې د احساس نه چاپېرېږي

ټول خوبونه مې لېمو کې شي ټالونه
شي ژوندون مې بې عنوانه حسرتونه
د یقین سره مې مل شي ګُمانونه

"لېونتوب" مې لېونتوب ته حېرانېږي
بې خودي مې د احساس نه چاپېرېږي

ستا د خیال سره د خیال په نیلۍ ګرځم
چورلکونه خورم په شان د سیلۍ ګرځم
وارخطا د حادثو په بلۍ ګرځم

ستا تصویر راجوړومه خو ورانیږي
بې خودي مې د احساس نه چاپیریږي

خپل "لایق" د تورو شپو نه رابهر که
یو بندي د زولنو نه رابهر که
یو دلیل د فلسفو نه رابهر که

څو به داسې په اوُرونو کې لوغړیږي
بې خودي مې د احساس نه چاپیریږي

# غرض

خپل دے که پردے د غرض اوړے دے
دلته هر سړے د غرض اوړے دے

څوک کړي فریبونه د یارۍ په نوم
څوک کوي چل ول د فقیرۍ په نوم
څوک وهي مالونه د ورورۍ په نوم

روغ هم لېونے د غرض اوړے دے
دلته هر سړے د غرض اوړے دے

څوک د سترګو جنګ کې چالاکي کوي
څوک په تول پارسنګ کې چالاکي کوي
څوک په شړنګا شړنګ کې چالاکي کوي

زوړ دے که زلمے د غرض اوړے دے
دلته هر سړے د غرض اوړے دے

څوک په شاعرۍ کې خپل غرض کوي
څوک په فنکارۍ کې خپل غرض کوي
څوک په رهبارۍ کې خپل غرض کوي

"خان" دے که "بالکے" د غرض اوړے دے
دلته هر سړے د غرض اوړے دے

دلته مینه چرته وفا چرته ده
دلته پښتو چرته حیا چرته ده
وایي "لایق" دلته ادا چرته ده

"جان" دے که "لالے" د غرض اوږے دے
دلته هر سړے د غرض اوږے دے

## لېونتوب

ستا تصویر مې په سلګو کښې
په سینه پورې نیولے
لور په لور وهمه منډې
وارخطا ګرېوان شلېدلے

چې مې خوا ته څوك نزدې شي
تصویر پټ کړم اوُبوږنېږم
ګُمانونه راسره شي
د خپل سیوري نه وېرېږم
شاته ګورمه روان شم
ساه نیولے غلے غلے

لور په لور وهمه منډې
وارخطا ګرېوان شلېدلے

کله ودرېږم یو خوا ته
په هوا کرښې راکاږم
د زړګي په آئینه کې
په خندا کرښې راکاږم

کله ځان سره موسکې شم
کله ځان له ژړېدلې

لور په لور وهمه منډې
وارخطا ګرېوان شلېدلې

چې مې مینه رسوا کېږي
خپل پردے راپورې خاندي
هر څوك ماته ګوته نیسي
هر سړے راپورې خاندي
ورته ډېر څه وئیل غواړم
ولې هېڅ نه شم وئیلے

لور په لور وهمه منډې
وارخطا ګرېوان شلېدلے

څه کانې راباندې شوي
زه پخپله نه پوهېږم
ته هم پټه پټه ژاړې
داسې اورمه خبرېږم
ستا "لایق" یم زما مینې
زه دې نشم هېرولے

لور په لور وهمه منډې
وارخطا ګرېوان شلېدلے

# څړيکې

چې مې سينه کې زړګے، کله دردونه کوي
ستا جدائي زما نه، ډېر تپوسونه کوي
زه دې تصوير سره خبرې په بيا بيا کوومه
ځان ته ښېرې کومه، تاته دعا کوومه

ستا په خاپونو پسې، په ګودرونو ګرځم
هر يو محفل ته ځمه، په زيارتونو ګرځم
د ارمانونو په هر څلي واويلا کوومه
ځان ته ښېرې کوومه، تاته دعا کوومه

زه چې يوازې کېنم، تا په سلګو يادووم
ستا لېونۍ خبرې، تر نيمو شپو يادووم
لاړ دې څارمه زه آهونه په بيا بيا کوومه
ځان ته ښېرې کوومه، تاته دعا کوومه

کله د سيند په غاړه، فکرونو ورړے ناست يم
کله خورو دشتو کې، سوچونو ورړے ناست يم
ستا د يادونو په لمبو کې ژوند اشنا کوومه
ځان ته ښيرې کوومه، تاته دعا کوومه

زما په ژوند کې هډو، څه مزه پاتې نه ده
څه اُميد پاتې نه دے، څه اسره پاتې نه ده
په ناخوالې د لېوني زړګي رضا کوومه
ځان ته ښېرې کوومه، تاته دعا کوومه

راشه تپوس مې اوکه، دا جدايي مې وژني
د مايوسۍ په چړو، دا تنهايي مې وژني

هاغه "لایق" یم انتظار دې خامخا کوومه
ځان ته ښېرې کوومه، تاته دعا کوومه

## خـوبونه

د تورو غرونو نه پناه جانانه
اووایه څنګه ئې زما جانانه
لېونې زړه دې تنګوي او که نه
چرې ما هم دریادوي او که نه

اوس چې زما او ستا خبرې کېږي
ګرانې د کلي مشران څه وائي
په ګودرونو ستا همزولې جُونه
اووایه تاته په ایمان څه وائي
مور چې دې کله پرېشانه ویني
تاته په "جي" او په "قربان" څه وایي

درته زما ذکر کوي او که نه
تا په سلګو کې پویه وي او که نه
چې ما او تا به پکې یو بل لیدل
جانانه هاغه پسرلي څنګه دي
چې به ئې زه همېش په کاڼو ویشتم
د کلي هاغه لېوني څنګه دي؟
چې به یې زمونږه ریباري کوله
هاغه ساده شان ګلالي څنګه دي؟

راپسې اوښکې تویه وي او که نه
زما خاپونه ښکلوي او که نه

ته رواجونو په کور کېنولې
زه بې وسۍ د کلي اووېستمه
ته د حالاتو نه مجبوره شولې
زه غریبۍ د کلي اووېستمه
چې محبت کړمه رسوا "لایقه"
خپلې نېستۍ د کلي اووېستمه

زما ارمان دې ژړوي او که نه
درته خوبونه تخنوي او که نه

# جانان

زړه مې خوري ټوپونه وارخطا یمه
وایمه رښتیا حالونه وایمه
غږ د لېونۍ مې اورېدلے دے
ماته ئې نن بیا جانان وئیلے دے

پوهه چې په ځان او جهان نه یمه
دغه یو اظهار لېونے کړے یم
اوس چې زه په ګټه تاوان نه یمه
پوهه یم اقرار لېونے کړے یم

دا چې د مستۍ نه په هوا يمه
ورك له خپله ځانه خامخا يمه
ضد مې ګلالۍ مينې منلے دے
ماته يې نن بيا جانان وئيلے دے

دا چې مې سېوا ده د زړګي درزا
خيال کې مې بيا هاغه شوخي ځي راځي
دا چې مې ساه ساه ده د زړګي درزا
سترګو ته مې هاغه مستي ځي راځي

دا چې د خپل ځان سره ګويا يمه
دا چې زه هر چاته په خندا يمه
حُسن مې په ذهن غوړېدلے دے
ماته ئې نن بيا جانان وئيلے دے

نن ئې چې په مينه راته وخندل
ملا د هر رقيب پوهېږم ماته شوه
بيا ئې چې خواږه خواږه راوکتل
لاړه د غماز خُونه ميراته شوه

داسې چې "لايقه" بې پروا يمه
کوږ له خياله ګرځمه بادشاه يمه
يو تصوير مې زړه پورې نيولے دے
ماته ئې نن بيا جانان وئيلے دے

# تنهايي

چې پکې ته نه ئې جانانه
زما په دې کلي کې څه دي؟
د زړګي سره بې له تا نه
زما په دې کلي کې څه دي؟

نه مې زړه لګي په سپرلو کې
نه د ګلونو په ورشو کې
ګرځم يوازې پرېشانه
زما په دې کلي کې څه دي؟

نه مې خوښېږي اتڼونه
نه مې چينې او چنارونه
لار ورکه شوې ده له مانه
زما په دې کلي کې څه دي؟

بلا دې واخلم چې ته لاړې
کړې دې د کلي کوڅې شاړې
چې مې د زړه دنيا شوه ورانه
زما په دې کلي کې څه دي

پردي پردي دي ښائيستونه
هم دي نيمګړي محفلونه
"لايقه" بې د خپل ارمانه
زما په دې کلي کښې څه دي؟

# جـذبې

کړه له خياله ګرځې د مستۍ نه دې قربان شم
زړګے ئې رانه يوړو د ځوانۍ نه دې قربان شم

په غټو غټو سترګو کې د مينې جهانونه
په سپين ګلابي مخ د منګرو زلفو ټالونه
خبرې په خوند خوند لکه وربېږي چې ګلونه

ناداني د ناداني زندګۍ نه دې قربان شم
زړګے ئې رانه يوړو له ځوانۍ نه دې قربان شم

په سرو سروټکو شونډو کې غابښونه ملغلرې
ستا پوزه محرابي ده جوړه شوې په هنر ئې
ستا غاړه صحرايي ده خمارونه سراسر ئې

سپرلي درته پسخېږي د شوخۍ نه دې قربان شم
زړګے ئې رانه يوړو د ځوانۍ نه دې قربان شم

باښه لشې لشې لکه باټې کړي نشترونه
پاسته پاسته لاسونه نرۍ ګوتې قلمونه
ستا خپې لکه د زرکې د خارو شان قدمونه

ئې ټوله مينه مينه د راستۍ نه دې قربان شم
زړګے ئې رانه يوړو د ځوانۍ نه دې قربان شم

ګلاب ګلاب ښائيست دې هم غزل دے هم ټپه ده
نشه نشه نظر دې د رنګونو پلوشه ده
"لايقه" د صفت ئې هره ساه دې پښتنه ده

نازبينې ملالۍ د خودداري نه دې قربان شم
زړګې ئې رانه يوړو د ځوانۍ نه دې قربان شم

# فيصله

د حُسن تصور به ستا د مخ په ننداره کړم
د مينې هر احساس به ستا له سترګو صدقه کړم

رنګونه به راټول کړم د ژوند د پسرلو نه
ګلونه به راټول کړم د فکر د ورشو نه
خوبونه به راټول کړم د سترګو د لېمو نه
دردونه به راټول کړم د زړه د زلزلو نه
دا هرڅه به جانانه ستا ځوانۍ ته غرغره کړم
د مينې هر احساس به ستا له سترګو صدقه کړم

چې ستا فکر مې يوسي ساګانې به نغمې کړم
غمونه به پخلا کړم سلګۍ به پلوشې کړم
ټپه چې شوګېرې شي فکرونه به ډيوې کړم
په خپلو ژړېدو به رالنډې فاصلې کړم
د ستورو خاموشۍ به دې ځوانۍ سره جرګه کړم
د مينې هر احساس به ستا له سترګو صدقه کړم

چې ته راسره نه يې وختونه به ايسار کړم
ستا لارو ته به ګورم رنګين به انتظار کړم
ګرېوان د محرومۍ به جانانه تار په تار کړم
شوخي به محبت کړم مستي به درنه زار کړم
"لايقه" رقيبان به د خپل ځان په وير اخته کړم
د مينې هر احساس به ستا له سترګو صدقه کړم

# خاپونه

تصویرونه جوړوومه، تصویرونه ورانوومه
لږ مې پوهه کړه جانانه، تا به څنګه هېروومه؟

کله اوخاندم سپوږمۍ ته، کله ستورو ته ګیلې کړم
کله ځان سره ګونېږم، کله سر وهم ښېرې کړم
تېر وختونه یادوومه، رنې اوښکې تویوومه
لږ مې پوهه کړه جانانه، تا به څنګه هېروومه؟

مازیګر چې د نمر سترګه، ځي له غرونو پناه کېږي
تنهایي مې د زړګي نه، د لمبو شان چاپېرېږي
هر خوا سترګې ګرځوومه، ستا خاپونه لټوومه
تېر وختونه یادومه، رنې اوښکې تویوومه
لږ مې پوهه کړه جانانه، تا به څنګه هېروومه؟

تا وئیل چې زه به راشم، ته زما لارو ته ګوره
زه ننګیاله پښتنه یم، خامخا لارو ته ګوره
بس کلونه شماروومه، دنیا کله خبروومه
لږ مې پوهه کړه جانانه، تا به څنګه هېروومه؟

زه "لایق" یوازې ناست یم، تېر وختونه مې یادېږي
د خپل کلي چنارونه، ګودرونه مې یادېږي
ارمانونه سوزوومه، په سر خاورې بادوومه
لږ مې پوهه کړه جانانه، تا به څنګه هېروومه؟

# مــــور

ته د مینې انتها ئې زما مورې
ماته ګرانه له هر چا ئې زما مورې

زۀ چې کله ستړے ستړے کور ته راشم
ستا په غېږه کې سر کېدمه دمه شم
د دنیا د هر یو غم نه بې پروا زه
تاته ګورم په مزه مزه اوده شم

که زه ستا یم ته زما ئې زما مورې
ماته ګرانه له هر چا ئې زما مورې

چې دې لاس کله دعا ته پورته کېږي
نو زما د زندګۍ سوالونه غواړې
په سجده باندې پرته ئې تر سحره
ته زما د کامیابۍ سوالونه غواړې

بې غرضه تمنا ئې زما مورې
ماته ګرانه له هر چا ئې زما مورې

چې ناروغه شم نو ډېره وارخطا ئې
په سپین مخ دې ډېر رنګونه الول شي
لاس دې رېږي سپېلنې راته لوګے کړې
چې په زړه کې دې شکونه الول شي

که دې ساه یم زما ساه ئې زما مورې
ماته ګرانه له هر چا ئې زما مورې

که ته نه وئې زما مورې زه به نه ووم
ستا د ذات له برکته زما ځان دے
دا هم ستا د لاربنودنې نتیجه ده
چې "لایق" یم هر منزل راته اسان دے

سراسر رڼا رڼا ئې زما مورې
ماته ګرانه له چا ئې زما مورې

## اعتماد

دا مې باور دے لېونے زړه صبرولے نه شې
ما هېرولے نه شې
بغیر له مانه د چا سترګو ته کتلے نه شې
ما هېرولے نه شې

ډېرې توبې اوباسې ډېر سوګندونه اوخورې
ځان سره غلې غلې ډېر قسمونه اوخورې
خو محبت په نفرتونو بدلولے نشې
ما هېرولے نه شې

کوې چې ستورو سره تر نیمو شپو خبرې
څه په ژړا خبرې څه په سلګو خبرې
خو څه خبرې دې په شونډو راوستلے نه شې
ما هېرولے نه شې

چې درته یاد شمه زه نو ستا شي مل غمونه
کله سوچونه کوې کله چیچې نوکُونه
واردې خطا شي سمه ساه هم اخیستلے نه شې

ما هېرولے نه شې

که ډېر وختونه تېر شي بیا به هم ما یادوې
خپل لېونے "لایق" به په هره ساه یادوې
بله نامه دې د زړګي په سر لیکلے نه شې

ما هېرولے نه شې

## ډیـــوې

په مخ مې رڼې اوښکې ګرمې ګرمې بهېدلې

چې ته مې یادولې

خیرې مې خپل نصیب ته په سلګو سلګو کولې

چې ته مې یادولې

وئیلے درته نشم څه ګرانه جدایي وه
خوره مې په خیالونو جانانه تنهایي وه
ډیوې مې ستا په طمع تر سحره بلولې

چې ته مې یادولې

راتلل چې مې زړګي ته شکونه، ګُمانونه
ستا غم به رانه تاو کړه تاوده تاوده لاسونه
قسم مې دې په خدا ے وي که د خیاله مې وتلې

چې ته مې یادولې

ولاړ چې ستا په طمع　　زه کله وم جانانه
دنیا مې لېونتوب ته　　رښتیا وه حق حېرانه
لمبې د جدایۍ مې له بدنه تاوېدلې

چې ته مې یادولې

ستا نوم به مې په شونډو　　خاموشه شان تېپه شوه
د مینې هره ساه به　　د حُسن پلوشه شوه
جذبې به مې "لایقه" ارمانونو تخنولې

چې ته مې یادولې

# تپوس

دا چې دومره ضد کوې　　ما له ځانه بېلوې
لږ د زړه نه تپوس اوکړه　　ما به څنګه هېروې؟

چې خوبونه دې لېمو کې　　تر سحره ازغي کېږي
ستا خیالونو ته به راشم　　هره ساه به دې لنډېږي
یو تصویر به جوړوې　　یو تصویر به ورانوې
لږ د زړه نه تپوس اوکړه　　ما به څنګه هېروې؟

چې زما څوك تپوس وکړي　　کله ستا نه په محفل کې
سرې لمبې به دې شي پورته　　یه جانانه په ګوګل کې
ته به اوښکې پټوې　　بهانې به جوړوې
لږ د زړه نه تپوس اوکړه　　ما به څنګه هېروې؟

تنهایي چې دې په ذهن　　مازیګر کې راخوره شي

هر سکون به درنه لاړ شي		هر ګُمان به درسره شي
مخ او سر به شوکوې		بس هم ما به یادوې
لږ د زړه نه تپوس اوکړه		ما به څنګه هېروې؟

* * *

تانه ځار شمه "لایقه"		لېوني خویونه پرېږده
لوئے آزار به درپسې شي		دا فضول ضدونه پرېږده

مینه څله زوروې
غم مې ولې زیاتوې
لږ د زړه نه تپوس اوکړه		ما به څنګه هېروې؟

## پوښتنې

خفه خفه ګرځې له مانه په تا څه شوي دي
حال راته اووایه جانانه په تا څه شوي دي

هېڅ نه پوهېږم د زړه سره چې ګناه مې څه ده
غلطي مي څه ده خبر نه یمه خطا مې څه ده
هره خبره کوې ورانه په تا څه شوي دي
حال راته اووایه جانانه په تا څه شوي دي

شوخي دې څه شوه مستي څه شوه خنداګانې څه شوې
نازونه څه شو نخرې څه شوې اداګانې څه شوې
زما د ټول عمر ارمانه په تا څه شوي دي
حال راته اووایه جانانه په تا څه شوي دي

زړه مې راډک شي کله کله چې زه تا يادوم
هاغه خوږې خوږې خبرې دې بيا بيا يادوم
بلا دې واخلم زما ځانه په تا څه شوي دي
حال راته اووايه جانانه په تا څه شوي دي

زه خو هم ستا هاغه "لايق" يمه بدل نه يمه
بغير له تا نه زما مينې مکمل نه يمه
ولې يې داسې بدګُمانه په تا څه شوي دي
حال راته اووايه جانانه په تا څه شوي دي

# امکان

ته چې زلفې په رخسار دانه دانه کړې
پېغلتوبه لېونۍ به زمانه کړې

خامخا به بلا سترګې درپسې وي
چې د ښکلو ښکلو سترګو يارانه کړې

ستا نازونه مکېزونه اداګانې
الول دې په لېمو کې خنداګانې
لور په لور د تورو زلفو خوشبويانې

هر نظر په يو نظر کې مستانه کړې
پېغلتوبه لېونۍ به زمانه کړې

چې موسکې شې ښکته ښکته غلې ګورې
سرې لمبې د ښائیستونو کړې راپورې
تانه ځار شمه رښتیا د سپوږمۍ خور ئې

څومره خوند کوي چې جوړه بهانه کړې
پېغلتوبه لېونۍ به زمانه کړې

ناقراره شان مستي لرې ځوانۍ کښې
قیامتونه دې پټ کړي په شوخۍ کښې
ثاني نه لرې په ټولې دنیاګۍ کښې

ستا "لایق" یم ګُلې ما به دیوانه کړې
پېغلتوبه لېونۍ به زمانه کړې

## جذبې

زما ساده جانانه — په مینه راته ګوره
قربان شمه له تانه — په مینه راته ګوره

چې ستا مینه زما شوه — قبوله مې دعا شوه
خوبونه مې رښتیا شو — رنګینه مې دنیا شوه
خفه نشې له مانه — په مینه راته ګوره
قربان شمه له تانه — په مینه راته ګوره

ګلونه تماشې کړي — رنګونه تماشې کړي
زمونږ د پاکې مینې — وختونه تماشې کړي
مونږ کم نه یو له چانه — په مینه راته ګوره
قربان شمه له تانه — په مینه راته ګوره

خندا دې قیامتونه — وفا دې ټکورونه
په زړه مې رسا لګي — کاته دې تندرونه
لوګے دې له حیا نه — په مینه راته ګوره
قربان شمه له تانه — په مینه راته ګوره

زه ستا یم ته زما یې — زما په تن کې ساه یې
"لایقه" یم نیمګړې — چې ته رانه جدا یې
تا غواړم د مولانه — په مینه راته ګوره
قربان شمه له تانه — په مینه راته ګوره

# انــداز

وهې په زنه شنه خالونه
مستې ستا هر انداز بدل دے

یو دې شوخي ده په خندا کښې
بل قیامتونه په ادا کښې
اخلې په چل چل قدمونه
مستې ستا هر انداز بدل دے

خواږه خواږه چې راته راګورې
درنه لوګے د سپوږمۍ خورې

کوې نازونه مکېږونه
مستې ستا هر انداز بدل دے

ستا د مستۍ خبرې کېږي
ستا د ځوانۍ خبرې کېږي
درپسې نشې نظرونه
مستې ستا هر انداز بدل دے

بې غمه ګرځې بې پروا يې
خو د "لايق" په تن کې ساه يې
چې وايې نخلې ازارونه
مستې ستا هر انداز بدل دے

## پـــرون

رانه به هېر وو سحرونه ماښامونه
مونږه چې دواړه ماشومان وو
نه خودغرضې وه، نه دهوکې، نه فرېبونه
مونږه چې دواړه ماشومان وو

مونږ به قيصې کړې د دېوانو
د ښاپېرو او د پېريانو
تر نيمو شپو پورې به نه راتله خوبونه
مونږه چې دواړه ماشومان وو

په وړه خوله وړې خبرې

راته دي يادې ستا سندرې
هم په نکريزو باندې سره واړه لاسونه
مونږه چې دواړه ماشومان وو

کله کوڅو کې چندروګانې
کله ګودر کې خنداګانې
کله په ونو کې کاږه واږه ټالونه
مونږه چې دواړه ماشومان وو

لکه د خوب ليده وو تېر شُو
خواږه د مينې مو ګنډېر شُو
"لايقه" هاغه ورځې بيا بيا يادومه
مونږه چې دواړه ماشومان وو

## دهوکې

يارانو دهوکه راکړه　　　　دوستانو دهوکه راکړه
د ژوند په لاره ډېرو اشنايانو دهوکه راکړه

دلاسه له ملګرو، رسوا ومه رسوا شوم
بدنام شومه په کور کې، د کلي د خندا شوم
ښاريانو دهوکه راکړه　　　　هندکيانو دهوکه راکړه
خبر له ځانه نه شومه سواتيانو دهوکه راکړه

هغوی مې زړه سوری کړو، په چا مې چې اتبار وو
هغوی راسره اوکړه، چې سر مې له چا ځار وو

خُوبانو دهوکه راکړه          ګلانو دهوکه راکړه
پردو ته به څه وایم چې خپلوانو دهوکه راکړه

له څټه چا حلال کړم ښکاره په اشنایۍ کښې
چا چل راسره وکړو صفـا په ورورلۍ کښې
پیرانو دهوکه کړه          شیخانو دهوکه راکړه
"لایقه" په چل چل کې ګنړکپانو دهوکه راکړه

# اقــرار

ته زما زندګي          زه یم ستا زندګي
خدایے مې مه کړه اشنا بې له تا زندګي

هره ساه کې مې ته          هم دُعا کې مې ته
په سلګو کې رائې          په خندا کې مې ته
زار له تا زار له تا، په بیا بیا زندګي
خدایے مې مه کړه اشنا، بې له تا زندګي

ئې تعبیر د وفا          هم تفسیر د وفا
زه نازیږم په تا          ئې تصویر د وفا
ستا وفا زندګي، ستا حیا زندګي
خدایے مې مه کړه اشنا، بې له تا زندګي

ټول وختونه ګواه　　　　دي رنګونه ګواه
په هر لوري خواره　　　　ښائيستونه ګواه

نه تېرېږي له تا ، نه جدا زندګي
خدا ے مې مه کړه اشنا بې له تا زندګي

چې ارمان شوې زما　　　　نو جانان شوې زما
يکه زار شوې زما　　　　يه قربان شوې زما

شوه "لايقه" ټپه په رښتيا زندګي
خدا ے مې مه کړه اشنا بې له تا زندګي

## سيوري

چې کله شم يوازې په بيا بيا دې يادووم
قربان دې شم له سترګو خامخا دې يادووم

چې کله پېغلې جونه د سيالۍ سندرې وائي
شوخي چې اننګو کې د شوخۍ سندرې وائي
ځواني چې پېغلتوب ته د ځوانۍ سندرې وائي

په زړه مې څه چل کېږي چې خندا دې يادووم
قربان دې شم له سترګو خامخا دې يادووم

چې کله مې په سترګو کې ول ول شي بهارونه
چې کله مې په خيال کې مستي واچوي ټالونه
چې کله مې په ذهن راخوره شي خمارونه

دروغ نه دي جانانه په رښتيا دې يادووم
قربان دې شم له سترګو خامخا دې يادووم

خوره چې په احساس مې د رنګونو لوپټه شي
فکرونه لېوني مې لږه ساه واخلي دمه شي
د زړه په درزېدو کې مې ارمان ټپه ټپه شي

ځواني دې شي راياده په دعا دې يادووم
قربان دې شم له سترګو خامخا دې يادووم

قربان ستا د حيا نه زما ټول محبتونه
پښتو ته دې لوګې شه زما مينې غېرتونه
ساه ګانې دې شه ټولې ناقراره نګهتونه

"لايقه" زما ساه ئې هره ساه دې يادووم
قربان دې شم له سترګو خامخا دې يادووم

## بې صبري

ژوند مې بې له تا د تېرېدو نه دے
ځکه مې زړګے د صبرېدو نه دے

ستا په انتظار عمر تېرېږي مې
راشه ګُمانونه سېوا کېږي مې
ستا کړي لوظونه، نه هېرېږې مې

غم مې په هېڅ حال د کمېدو نه دے
ځکه مې زړګے د صبرېدو نه دے

بې له تانه زه چاته کتے نه شم
نوم د ښائیستونو اخیستے نه شم
یم دې لېونے خو لېونے نه شم

داغ د مئینتوب د زړېدو نه دے
ځکه مې زړګے د صبرېدو نه دے

ما دې محبت زړه کې ساتلے دے
ستا تصویر مې زړه پورې نیولے دے
ستا "لایق" هم ستا ارمان ژړلے دے

یاد دې په رښتیا د هېرېدو نه دے
ځکه مې زړګے د صبرېدو نه دے

# تنهــاکې

بدلې په نفرت کړې د عمرونو يارانې

ناترسه زمانې

د زړونو ارمانونه کړې نيمګړې افسانې

ناترسه زمانې

د ژوند په لويه لاره          ياران جدا جدا کړې
په غېږ د محبت کې          اورونه راپيدا کړې
کړې ورانې په چل ول د اميدونو نښانې

ناترسه زمانې

خوبونه تار په تار کړې          قرار هم ناقرار کړې
تاجونه د وختونو          په زمکه راګوزار کړې
بدلې کړې په ساندو د رنګونو ترانې

ناترسه زمانې

يقين کړې ګُمانونه          باور کړې نفرتونه
د زړونو فاصلو کې          کړې ژوبل حسرتونه
په ظلم جبر ماتې کړې د صبر پېمانې

ناترسه زمانې

ستا هر انداز بدل دے          خندا کې دې هم چل دے
په هر چا کوې لوبې          فريب دې مکمل دے
"لايق" ته دې کړې جوړې د وختونو بهانې

ناترسه زمانې

# ګواهي

دنیا راته حېرانه ده اسمان په تماشه دے
زمونږه محبت ته ټول جهان په تماشه دے
ترڅو چې زمونږ ساه وي          دا مینه به رښتیا وي
یو بل نه به ځارېږو          وختونه دې ګواه وي
حالات ګوته په خوله دي هم دوران په تماشه دے
زمونږه محبت ته ټول جهان په تماشه دے
مونږ کړے له حالاتو          په نره بغاوت دے
دا ځکه په جذبو کې          زمونږه صداقت دے
دې مینې لېونۍ ته هر انسان په تماشه دے
زمونږه محبت ته ټول جهان په تماشه دے
مونږ دواړه د یو بل یُو          پوره یوو مکمل یُو
رنګونه د وفا یُو          ګلونه د اوربل یُو
"لایقه" لېونتوب ته مو ارمان په تماشه دے
زمونږه محبت ته ټول جهان په تماشه دے

# مینه

څه چې په تا شوي دي          هغه په ما شوي دي
په محبت کې اشنا          دا په هر چا شوي دي
په چپه خوله د ناقراره جذبو شور به منې
د مینې زور به منې
چې د یو بل شُو دواړه          بدل بدل شُو دواړه
ټولې دنیا اولیدو          چې مکمل شُو دواړه
چې رواجونه تار په تار کړي هاغه تور به منې
د مینې زور به منې

شوې رانږدې فاصلې          اُوږدې اُوږدې فاصلې
وفا وفا شوې زمونږ          لمبې لمبې فاصلې
په ډېره نره اوس د کور کلې پېغور به منې

د مينې زور به منې

د حُسن راز دے مينه          د مينې ساز دے مينه
ستا د جنون "لايقه"          اصل جواز دے مينه
چې د اوبو په سر ګډا کړي هاغه اور به منې

د مينې زور به منې

# تخيل

نن مې ارمان پوره شو          څه په ښه شان پوره شو
د ښائيستونو په اسمان کې مې سپوږمۍ اوليده

ما ښاپېرۍ اوليده

ما به ليدل خوبونه          بدل بدل خوبونه
د يو غزل په ارمان          غزل غزل خوبونه
نن مې د خوب د تعبيرونو شهزادګۍ اوليده

ما ښاپېرۍ اوليده

زړه مې قرار نه کوي          نه کوي وار نه کوي
سترګې څلور شوې زما          ذهن مې کار نه کوي
چې د رنګونو په اتڼ کې مې کلۍ اوليده

ما ښاپېرۍ وليده

چې مې غوښتله مدام          چې مې ستايله مدام
زما د خيال کاله ته          چې به راتلله مدام
"لايقه" نن مې هغه مينه لېونۍ اوليده

ما ښاپېرۍ اوليده

# پېغور

پاتې نیمګړې مې د ژوند هره دعا شوه

ورانه زما دزړه دنیا شوه

لېونۍ مینه مې په هر ځائې کې رسوا شوه

ورانه زما د زړه دنیا شوه

سپوږمۍ ته ګورمه زه، چې رایادېږې کله
زما په زړه کې اوسې، مانه هېرېږې کله
په ویر بدله مې د ټول عمر خندا شوه

ورانه زما د زړه دنیا شوه

په زړه بلېږي زما ، د تهمتونو لمبې
چې راپسې شوي اشنا ، د پېغورونو لمبې
خپل محبت راته رښتیا لویه سزا شوه

ورانه زما د زړه دنیا شوه

په خپل نصیب خفه یم، تانه ګیله نه کووم
ګرځم تنها "لایقه"، چا نه ګیله نه کووم
زما په برخه د تمام عمر ژړا شوه

ورانه زما د زړه دنیا شوه

# سل په سل

منم چې ښکلې په دنیا کښې ډېر دي
په ټول یورپ او ایشیا کښې ډېر دي
خو زما یار د ټولو ښکلو نه بدل دے
هم رباعي ده، هم غزل دے

کوي په ناز او په نخرو خبرې
خوږې، خوږې لکه خارو خبرې
لکه د ښکلو ښاپېرو خبرې

زما د ژوند د لارې مل دے
هم رباعي ده، هم غزل دے

لرې ګلاب غوندې رنګینه ځواني
د هر یو حُسن نه حسینه ځواني
ډکه له نازه نازنینه ځواني

د مُرادونو شیش محل دے
هم رباعي ده، هم غزل دے

له هر چا ښکلې زما ښکلې جانان
زما "لایق" زما سپېڅلې جانان
هغه وختونو نازولې جانان

بس مینه مینه سل په سل دے
هم رباعي ده، هم غزل دے

# ډاډ

زه درسره يمه اشنا د چا پروا مه کوه

غم د دنيا مه کوه

چې محبت کوې نو زړه سره صلا مه کوه

غم د دنيا مه کوه

زما په سترګو کې اُوګوره هېره که ټوله دنيا نوره
ګوره چې زه دې يم ملګرے څله يرېږې له پېغوره
ډاډه راګوره لېونۍ مينه په غلا مه کوه

غم د دنيا مه کوه

هېر کړه رسمونه رواجونه چې مکمل مو شي خوبونه
چې مې لاسونه تاله درکړه زه دې هم غواړمه لاسونه
بلا دې واخلم هډو وېره د بل چا مه کوه

غم د دنيا مه کوه

زه دې "لايق" يم ښکاره وايم ستا يمه ستا يمه زه ستا يم
زما د خوږ زړګي قراره زه دې په مينه باندې پايم
هسې شکونه ګمانونه خامخا مه کوه

غم د دنيا مه کوه

# بــاور

ولې باور نه کوې ولې باور
په ما نظر نه کوې په ما نظر
خیر که ساده باده انسان یم
خو ستا د مینې قدردان یم

زړه مې په تا باېللې، تا سره مینه کووم
په ډېرو نه پوهېږم، خبره سپینه کووم
نه په دنیا یم نه په ځان یم
خو ستا د مینې قدردان یم

په دې ساده سینه کې، زړه د بادشاه لرمه
په ښکاره مینه کووم، پروا د چا لرمه
که زه په ډېرو ښکلو ګران یم
خو ستا د مینې قدردان یم

زما له پاکې مینې، ګوره انکار اونکړې
د غمازانو په خوله، چرې اتبار اونکړې
که د خیالونو شاه جهان یم
خو ستا د مینې قدردان یم

زه دې پښتو پالمه، ګوره زه ستا "لایق" یم
مانه نفرت مه کوه زه، د وفا "لایق" یم
که په سلګو او په لړزان یم
خو ستا د مینې قدردان یم

# حسرت

لا مې ځواني ده انتظار خو اوکه
مرګیه مه راځه لږ وار خو اوکه

لا مې د ژوند سپرلي لیدلي نه دي
لا مې په ډکه خوله خندلي نه دي
د ناقراره جذبو شمار خو اوکه
مرګیه مه راځه لږ وار خو اوکه

لا مې په زړه کې ارمانونه ډېر دي
لا مې نیمګړي حسرتونه ډېر دي
بلا دې واخلمه اتبار خو اوکه
مرګیه مه راځه لږ وار خو اوکه

لا به په زلفو کې ګلونه ږدمه
لا به په زنه شنه خالونه ږدمه
ته مې احساس د نوبهار خو اوکه
مرګیه مه راځه لږ وار خو اوکه

په زړو لارو راشه بیا "لایقه"
چا نه تپوس اوکه زما "لایقه"
راته د لرې یکه زار اوکه
مرګیه مه راځه لږ وار خو اوکه

# فــراق

یه بې پروا جانانه   وایه رښتیا جانانه
درته یادېږم که نه   ماته خو ډېر ډېر یادېږې

چې شم یوازې کله، خپل ماشوم توب یادوم
ستا لېوني خویونه، کمعقلتوب یادوم
تــه چــې له ما جانانه ګرځې جدا جانانه
درتـــه یـــادېږم که نه ماته خو ډېر ډېر یادېږې

ته چې خفه شې کله، په زړه دې څه تېرېږي
زما خو خدایږو اشنا، وختونه نه تېرېږي
قـربـان له تـا جانانه اووایه دا جانانه
درتـــه یـــادېږم که نه ماته خو ډېر ډېر یادېږې

کارغه چي پاس په بلی، کښني خبرې کوي
یا چې دې سترګه رپي، خیال دې وزرې کوي
یــه زمــا ساه جانانه سوال هم دعا جانانه
درتــه یـادېږم که نه ماته خو ډېر ډېر یادېږې

هاغه ساده "لایق" یم، هغهو بدل نه یمه
چې تا به هېره کړمه، دومره پاګل نه یمه
زه خو یم ستا جانانهزما زما جانانه
درتــه یادېږم کـــه نه ماته خو ډېر ډېر یادېږې

# غـــلا

زړه رانه تا وړے دے
تا په رښتیا وړے دے
ګوره منکره نه شې
ډېر دې په غلا وړے دے

زه ورکې ځان وینمه
ته چې خندېږې کله
په زړه مې لوبې کوې
چې وشرمېږې کله

خوب دې زما وړے دے
ګوره منکره نه شې
ډېر دې په غلا وړے دے

د زړه په غوږ واورم
ستا د ځوانۍ سندره
ستا د مستۍ سندره
ستا د شوخۍ سندره

مانه دې ساه وړے دے
ګوره منکره نه شې
ډېر دې په غلا وړے دے

دې بې له تانه پیکه
ددې دنیا رنګونه

د محبت رنګونه
هم د وفا رنګونه

خیال مې ادا وړے دے
ګوره منکره نه شې
ډیر دې په غلا وړے دے

چې په ما شك ونه کړې
ستا لېونے یم ګلې
هاغه "لایق" یم کنه
ساده سړے یم ګلې

سکون مې چا وړے دے
ګوره منکره نشې
ډیر دې په غلا وړے دے

# اشنـا

تا چې په خندا اووے　　دا ځل دې ربښتیا اووے
پوهه په ځان نشولې　　ماته دې اشنا اووے

ډېره موده پس چې تا　　هېر واړه ضدونه کړل
ماته دې پښتو کړله　　مات دې رواجونه کړل
ګوره څومره ښه شوله　　هرڅه دې صفا اووے
پوهه په ځان نشولې　　ماته دې اشنا اووے

څنګه په هنر هنر　　تا ګلې بدل کړمه
مینه دې رسوا نکړه　　زه دې مکمل کړمه
تا چې ښکته اوکتل　　سترګو دې په غلا اووے
پوهه په ځان نشولې　　ماته دې اشنا اووے

ستا مینه زما مینه　　لاړله سندره شوه
څومره معتبره شوه　　څومره زوروره شوه
مینه غرور نه مني　　حُسن اخر دا اووے
پوهه په ځان نشولې　　ماته دې اشنا اووے

زار دې د نخرو شمه　　زار دې له نازونو شم
لا دې نور ستي ستي　　ستا په تهمتونو شم
شي به ستا "لایق" بدل　　چا اووے دا چا اووے؟
پوهه په ځان نشولې　　ماته دې اشنا اووے

# ادراك

چې کوم خوا ګورمه تصویر مې د جانان ښکاري
ماته د ژوند په ښائیستونو کښې خپل ځان ښکاري

ستا په رخسار چې د حیا رنګونه لوبې کوي
په هره ساه مې د وفا رنګونه لوبې کوي
بدل بدل راته نازونه د ارمان ښکاري
ماته د ژوند په ښائیستونو کې خپل ځان ښکاري

دا لېونتوب زما نه نور محبتونه غواړي
د رواجونو نه ښکاره بغاوتونه غواړي
د زړه دنیا مې ځکه ټوله په لړزان ښکاري
ماته د ژوند په ښائیستونو کې خپل ځان ښکاري

په سترګو سترګو کې د مینې په نغمو پوهه شوم
د پېغلتوب په ناقراره تقاضو پوهه شوم
د حُسن خیال راته "لایقه" پرستان ښکاري
ماته د ژوند په ښائیستونو کې خپل ځان ښکاري

# ټال

چې دریادېږم کڅه سترګه دې رېږې که نا
په سپین رخسار دې د رنګونو ټال جوړېږي که نا

زړه دې درزېږي که نا

چې مازیګر شي نمر د غرونو پناه کېږي کله
په هر یو لور چې د تیارې څادر خورېږي کله
ستا په لېمو کې تصویرونه موسکي کېږي که نا
په سپین رخسار دې د رنګونو ټال جوړېږي که نا

زړه دې درزېږي که نا

ته چې یوازې کله ناسته ئې سوچونه کوې
فکر دې یوسي اسویلي کوې آهونه کوې
یو لېونے مئین دې مخې ته اودرېږي که نا
په سپین رخسار دې د رنګونو ټال جوړېږي که نا

زړه دې درزېږي که نا

چې وارخطا وارخطا ګورې آئینه کښې کله
چې طوفانونه دې ول ول شي په سینه کښې کله
ساده "لایق" دې غټو سترګو کښې غړېږي که نا
په سپین رخسار دې د رنګونو ټال جوړېږي که نا

زړه دې درزېږي که نا

# ځانګو

چې شپه کله پخه شي          دنیا ټوله اوده شي
یادونه دې سېوا شي          په زړه مې زلزله شي
ښاپست دې زه د ستورو په ځلا کښې لټوومه
تصویر دې جوړوومه

ساتلې مې ستا مینه          د زړه په درزېدو کښې
غرېږې لکه خوب مې          د سترګو په لېمو کې
ژوندون دې د ارمان په زولنو کښې تېروومه
تصویر دې جوړوومه

زما د زړه دمه ئې          له تا صبرېدے نشم
دنیا به شي بدله          خو زه بدلېدے نشم
هر وخت دې د فکرونو په ځانګو کښې ځنګوومه
تصویر دې جوړوومه

چې کله شم یوازې          په زړه مې راروربېږي
ساده باده "لایقه"          زما نه، نه هېرېږې
پټ پټ لکه تعویذ چې دې په غاړه ګرځوومه
تصویر دې جوړوومه

# تــوبــه

ژاړمه د ورځې شوګېرې تمامه شپه کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

ځو به وړم نازونه ځو به لارې ته کاته کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

ډېر ډېر کــړېــدلے یــم ډېر ډېر ژړېدلے یم
اور کې سوځېدلے یم
نوم به دې وانخلمه اشنا کلکه وعده کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

ښه دې د خندا کړمه هر ځای دې رسوا کړمه
خــور دې په دنیا کړمه
څه به درته وایمه رښتیا څه به ګیله کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

زړه مې قرار نه کوي اوښکې مې وار نه کوي
عقل مې کار نه کوي
ظلم به تر کومې زه په دغه پاګل زړه کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

لا دروغ لوظونه کړه بیا بیا قسمونه کړه
ښه ډېر سوګندونه کړه
نه کوؤم "لایقه" څه اتبار دې په خوله نه کوؤم

بیا به مینه نه کوؤم

# حېراني

نه مې هېرېدے شې نه دې هېرېدے شم
وايه څه به کېږي  وايه څه به کېږي

ستړګې راپسې شولې، کلې کې رسوا شومه
ته هم د خندا شولې، زه هم د خندا شومه
نه مې پرېښودے شې نه دې پرېښودے شم
وايه څه به کېږي  وايه څه به کېږي

ګوره څومره ښه لګي، دا د مئينتوب قيصه
دا د بې خودۍ قيصه دا د لېونتوب قيصه
نه ته صبرېدے شې نه زه صبرېدے شم
وايه څه به کېږي  وايه څه به کېږي

څه به محبت وکړو، داسې په اُورونو کې
سوځو به ترڅو پورې، مونږ په رواجونو کې
ته به لېونۍ شې زه به لېونے شم
وايه څه به کېږي  وايه څه به کېږي

ته هم بې قصوره يې، زه هم بې قصوره يم
غږ چې درته نه کوم، زه "لايق" مجبوره يم
نه راله  راتلے شې، نه درله درتلے شم
وايه څه به کېږي   وايه څه به کېږي

# بېلتون

خورې په هر يو لوري د رنګونو پلوشې دي
ته ولې نه راځې
ځواني ده هم مستي ده تماشه ده تماشې دي
ته ولې نه راځې

زما د زړګي سره، لوظونه دې رښتيا کړه
خيالونه مې رنګين کړه، خوبونه مې رښتيا کړه
ما ستا په انتظار کې صبا کړې بلا شپې دي
ته ولې نه راځې

بې تا نه مې وختونه، اشنا څنګه تېرېږي
بېګا څنګه تېرېږي، صبا څنګه تېرېږي
وئيلې درته نشم زما سترګې پښتنې دي
ته ولې نه راځې

په سپينه ورځې راشه، خفه چې رقيبان شي
پوره چې دې ارمان شي، پوره چې مې ارمان شي
بېلتون دې اشنا نه دے قيامتونه زلزلې دي
ته ولې نه راځې

ساتلي مې دي تاله، د حُسن بهارونه
چې وانخلي "لايقه" دا مينه نظرونه
"وتلې" مې څو ځله دواړه شونډې تا پسې دي
ته ولې نه راځې

# جدايي

جانانه و جانانه
ژوندون کله تېرېږي د زړه سره بې له تانه
جانانه و جانانه

ما ستا په نامه کړي    د ټول عمر خوبونه
لوګې به کړمه تاته    خپل واړه ارمانونه
دنيا به په رښتيا کړم خپلې مينې ته حېرانه
جانانه و جانانه

زما په هر نظر کې    هم ستا مينه غړېږي
ستا مخ پکې زه وينم    ګلونه چې غوړېږي
غوښتلې مې ستا مينه همېشه ده د مولانه
جانانه و جانانه

وختونو خواره کړي    په هر لوري دامونه
مونږ بېل نکړي يرېږم    د خلقو نظرونه
په زړه کښې دې ساتمه پټه مينه له هر چانه
جانانه و جانانه

زمونږ د پاکې مينې    ګواه ټوله دنيا ده
زه ستا يمه "لايقه"    دا ستا مينه زما ده
قربان دې په څو ځله د ساده باده خندا نه
جانانه و جانانه

# بخــري

په زړه مې کوي لوبې دا نشه نشه کافرې
ستا سترګې جادوګرې
خوبونه رانه يوسي په چل چل کې زوروري
ستا سترګې جادوګرې

دنيا يې لېونۍ کړه ښکلا يې لېونۍ کړه
فضا يې لېونۍ کړه
په خپله سادګۍ کې دي بې شانه معتبرې
ستا سترګې جادوګرې

چې کله په خندا شي رنګونه په ګډا شي
وختونه وارخطا شي
کوي په يو نظر کې څه بلا بلا خبرې
ستا سترګې جادوګرې

کاته يې تندرونه باڼه يې نشترونه
شوخي يې قيامتونه
نېزې دي هم ليندې دي چې ګوزار کوي د لرې
ستا سترګې جادوګرې

اورونه دي لمبې دي "لايقه" زلزلې دي
خو بيا ډېرې خوږې دي
هر داؤ ګټي له ما د ښائيستونو جوارګرې
ستا سترګې جادوګرې

# بې خودي

سينو کښې چې مستي د مينې اچوي ټالونه
راځي دې بهارونه
خندا چې په رخسار د لېونتوب خوري چورلکونه
راځي دې بهارونه

خورې چې په هر لوري　　　د حسن رنګينئ شي
خودي شي ناقراره　　　جذبې چې لېونئ شي
جوړېږي چې لېمو کښې د فکرونو محلونه
راځي دې بهارونه

لمحې چې په ګډا شي　　　وختونه چې ټپه شي
احساس چې په خندا شي　　　خيالونه چې دمه شي
حالونه چې يو بل ته غلي وايي نظرونه
راځي دې بهارونه

چې سترګو کښې شوخيانې　　　يو بل ته اشارې کړي
خود سره خوشبويانې　　　يو بل ته اشارې کړي
"لايقه" چې فطرت شي سراسر نزاکتونه
راځي دې بهارونه

# پېغلتوب

په زړګو لوبې کوي　　　په جذبو لوبې کوي
بلا شوخه ناداني
ستا نشه نشه ځواني
په نظر کې دې مستي　　　پېغلتوب کې دې اثر

ناقراره بې خودي        خلق واړه وي په شر
مئين ټول کړي تاواني
ستا نشه نشه ځواني

ستا دے حُسن بې پروا        پروا نه لري د چا
لېوني کوې کتل        لېونۍ دې کړه دنيا
د چا نه مني خاني
ستا نشه نشه ځواني

يې د مينې ښاپېرۍ        ښائيستونه درنه زار
د خوبونو شهزادګۍ        ټول رنګونه درنه زار
د "لايق" زندګاني
ستا نشه نشه ځواني

# زړګیه وایه کنه

زاړه وختونه څه شو          د ژوند رنګونه څه شو
لږ مې کړه پوهه لېوني محبتونه څه شو

زړګیه وایه کنه

نه یم باهر خوشحاله          نه مې زړه کور کې لګي
نه خاموشي خوښه وم          نه مې زړه شور کې لګي
خواږه خوبونه څه شو          هغه نازونه څه شو
چې په سینه کې مې ساتل هغه دردونه څه شو

زړګیه وایه کنه

هر وخت خفه خفه یم          مانه خندا هېره ده
داسې یوازې شومه          مانه دنیا هېره ده
رنګین خیالونه څه شو          ساز او سُرونه څه شو
چې پرې بې غمه زنګېدم هغه ټالونه څه شو

زړګیه وایه کنه

زه په خپل کور دننه          لکه قیدي اوسېږم
د رواجونو اور کې          بندي بندي اوسېږم
ازاد فکرونه څه شو          ځلا سوچونه څه شو
چې به له مانه زارېدل هغه مخونه څه شو

زړګیه وایه کنه

په ما دا ټولې لوبې          زړګیه تا کړي دي
په ډېر هُنر هُنر دې          صبا بېګا کړي دي
هاغه لوظونه څه شو          ډېر قسمونه څه شو
چې په "لایق" به دې کول هاغه چلونه څه شو

زړګیه وایه کنه

# هغــه

یوه حسینه جینۍ          پوهه په مینه جینۍ
زما په زړه کوي چلونه نازنینه جینۍ
یوه حسینه جینۍ

په هر نظر کې شوخي      هره ادا کې مستي
هره وینا کې جادو          هره خندا کې مستي
یوه شیرینه جیینۍ          ډېره نازبینه جینۍ
زما په سترګو کې غرېږي لونګینه جینۍ
یوه حسینه جینۍ

له ځانه ورکه ورکه          یوه بې غمه ځواني
په رنګینو کې ډوُبه          یوه بې دمه ځواني
یوه مالګینه جینۍ          ده ماه جبینه جینۍ
خوږه خوږه ټولو همزولو کې ګبینه جینۍ
یوه حسینه جینۍ

په هر یو ذهن خوره          د لېونتوب سندره
ده په رښتیا "لایقه"          د پېغلتوب سندره
ده ګل ورینه جینۍ          ډېره سنګینه جینۍ
زما "ملاله" په پښتو باندې مئینه جینۍ
یوه حسینه جینۍ

# بــدل

ماله جواب راکه
زما د ژوند د پسرلو پوره حساب راکه
ماله جواب راکه

یا ښه په نره باندې ماته اشنا ووایه
یا مې پردے پردے که راته صفا ووایه
یا څه علاج ددې زړګي خانه خراب راکه
ماله جواب راکه

اوس چې مې نه پېژنې زما وفا هېروې
زما خود سره مینې داسې چې ما هېروې
ماله واپس هاغه وختونه د شباب راکه
ماله جواب راکه

ما چې لمبو کې تېر کړه د تنهایۍ وختونه
د انتظار په اور کې د رسوایۍ وختونه
څه خو بدل د جدایۍ ددې عذاب راکه
ماله جواب راکه

چې د خپل نوم سره زه نوم د اشنا ولیکم
چې د "لایق" سندره صفا صفا ولیکم
وخته په لاس د قسمتونو ټول کتاب راکه
ماله جواب راکه

# اظهــار

راځه راځه جانانه زما ښائیسته جانانه
زما په زړه کې اوسه ئې مې هرڅه جانانه

ددې دنیا رسمونه پرېږده
لاس دې زما په لاس کې کېږده

مانه جدا چې نشې د سترګو توره زما
ته د بل چا چې نشې د زړه ټکوره زما
وړمه وړمه جانانه زما ښائیسته جانانه
زما په زړه کې اوسه ئې مې هرڅه جانانه

ددې دنیا رسمونه پرېږده
لاس دې زما په لاس کې کېږده

کوې په ما چلونه ستا نازولې سترګې
اومنه دا سوالونه نکړې بدلې سترګې
لمبه لمبه جانانه زما ښائیسته جانانه
زما په زړه کې اوسه ئې مې هرڅه جانانه

ددې دنیا رسمونه پرېږده
لاس دې زما په لاس کې کېږده

ما دې ستائیلې مینه د لېونتوب په ژبه
ما دې پاللې مینه د مئینتوب په ژبه
ټپه ټپه جانانه زما ښائیسته جانانه
زما په زړه کې اوسه ئې مې هرڅه جانانه

ددې دنیا رسمونه پرېږده
لاس دې زما په لاس کې کېږده

ګوره چې هېرې نکړې — د خپل "لايق" خبرې
له ستوني تېرې نکړې — د يو صادق خبرې
نغمه نغمه جانانه — زما ښائيسته جانانه
زما په زړه کې اوسه — ئې مې هرڅه جانانه

ددې دنيا رسمونه پرېږده
لاس دې زما په لاس کې کېږده

## دلداري

قلبي و يا قلبي — مرحبا يا قلبي
ستايمه ستا قلبي — مرحبا يا قلبي

ستا ګلاب ګلاب حُسن — خور لکه کتاب حُسن
لوبې په جذبو کوي — تل شباب شباب حُسن
ناز و ادا قلبي — مرحبا يا قلبي
ستايمه ستا قلبي — مرحبا يا قلبي

ستا هره ادا لشې — مينه هم وفا لشې
لګي په زړګي زما — دا لشې هم دا لشې
ټوله حيا قلبي — مرحبا يا قلبي
ستايمه ستا قلبي — مرحبا يا قلبي

ستا هر يو انداز بدل — ټوله ئې غزل غزل
زړونه تختوي مدام — هر نظر اجل اجل
حُسن ښکلا قلبي — مرحبا يا قلبي
ستايمه ستا قلبي — مرحبا يا قلبي

ته یې دلداري زما　　　ته یې فنکاري زما
ګوره ستا "لایق" یمه　　　ته یې شاعري زما
ځار شم له تا قلبي　　　مرحبا یا قلبي
ستایمه ستا قلبي　　　مرحبا یا قلبي

## اتبــار

زه بې وفا نه یمه
زه د بل چا نه یمه
لږ د وختونو فیصلو ته انتظار اوکه
په ما اتبار اوکه

بې پته نه یم اشنا　　　زه محبت پېژنم
څه په جذبو پوهېږم　　　زه صداقت پېژنم
ښه په ډاډه د لېونۍ مینې اظهار اوکه
په ما اتبار اوکه

زما په پاکه مینه　　　پوره باور اولره
په تا نظر ساتمه　　　په ما نظر اولره
په کاڼي زړه کې دې زما دپاره لار اوکه
په ما اتبار اوکه

که څوك دې نه پېژني　　　زه خو دې ښه پېژنم
دا ګمان اونکړې ته　　　چې زه دې نه پېژنم
په ډېره نره د وفا مینې اقرار اوکه
په ما اتبار اوکه

ستا لېونتوب منمه زما ساده "لايقه"
تا هېروِلے نه شم زما هرځه "لايقه"
د دار په سر لکه زما شان يکه زار اوکه
په ما اتبار اوکه

## ا زغـــي

دا شوخي مې قتلوي دا ځواني مې قتلوي
دَ دوه سترګو لېونو حېراني مې قتلوي
په ډېر چل چل چل
يو قدم لکه خارو بل ښائيست د ښاپېرو
خنداګانې په هنر هم خبرې په نخرو
هر انداز مې قتلوي دا مستي مې قتلوي
د دوه سترګو لېونو حېراني مې قتلوي
په ډېر چل چل چل
لکه حوره د حرم ټوله جوړه په قلم
په اوږو خورې ورې تورې زلفې پېچ و خم
دا غرور مې قتلوي بې رخي مې قتلوي
د دوه سترګو لېونو حېراني مې قتلوي
په ډېر چل چل چل
هره ساه زړه ته راځي په بيا بيا زړه ته راځي
چې "لايقه" شم خفه خامخا زړه ته راځي
مجبوري مې قتلوي بې وسي مې قتلوي
د دوه سترګو لېونو حېراني مې قتلوي
په ډېر چل چل چل

# اسویلي

پروانه شوم　　　هاے مستانه شوم
په محبت کې، ستا په الفت کې
زه دیوانه شوم

نه مې سکون شته　　　نه مې ارام شته
نه مې سحر شته　　　نه مې ماښام شته
له خپله ځانه خوږه جانانه
زه بېګانه شوم

نهٔ راکتے شې　　　نه درکتے شم
نه ته راتلے شې　　　نه زه درتلے شم
په جدایۍ کې، په تنهایۍ کې
زه ترانه شوم

نه ته صبرېږې　　　نه زه صبرېږم
په دې پوهېږې　　　په دې پوهېږم
د تهمتونو، د پېغورونو
زهٔ نشانه شوم

راته اوګوره　　　هاغه "لایق" یم
ګُمان اونکړې　　　په زړه صادق یم
ګوره نه ګل شوم، نه دې منزل شوم
بس افسانه شوم

# تصویر

ادا دې لېونۍ		خندا دې لېونۍ
حیا ، وفا ، موسکا دې لېونۍ

ځواني دې په ربښتیا		ټپه د لېونتوب
ښائیست دې سراسر		نغمه د مئینتوب
وینا دې لېونۍ		خندا دې لیونۍ
حیا ، وفا ، موسکا دې لېونۍ

د حُسن ښاپېرۍ		رنګونه درنه ځار
سپرلي درته لوګے		ګلونه درنه ځار
ښکلا دې لېونۍ		خندا دې لېونۍ
حیا ، وفا ، موسکا دې لېونۍ

نظر دې په چل چل		خوبونه تختوي
ځواني دې په هنر		فکرونه تخنوي
دا غلا دې لېونۍ		خندا دې لېونۍ
حیا ، وفا ، موسکا دې لېونۍ

"لایق" دې یادوي		خبرېږې او که نه
د مینې په جذبو		پوهېږې او که نه
جفا دې لېونۍ		خندا دې لېونۍ
حیا ، وفا ، موسکا دې لېونۍ

# ساندې

چې نکرېزې په لاسونو لګوې
په زخمونو زما مالګې دوړوې

کله شمعې چې له تانه چاپيرېږي
ښائيستونه د حيا نه چاپېرېږي
مجبورۍ ټولې زما نه چاپېرېږي
په اوږُو چې زلفې ورو ورو خوروې
په زخمونو زما مالګې دوړوې

په رخسار چې دې غوړېږي سره ګلونه
په سينه کښې دې ګډېږي ارمانونه
په زړګي مې راورېږي تندرونه
ته چې شونډې په نازونو سرې کوې
په زخمونو زما مالګې دوړوې

ئې بې غمه د دنيا نه څه خبر ئې
په خندا کې د بل چا نه څه خبر ئې
تا نه ځار شمه زما نه څه خبر ئې
چې رقيب په مينه مينه يادوې
په زخمونو زما مالګې دوړوې

دغه خيال مې بې وسې سېوا کوي
غريبي مې مجبوري سېوا کوي
تنهايي مې تنهايي سېوا کوي
خپل "لايق" چې داسې زر زر هېروې
په زخمونو زما مالګې دوړوې

# سنګار

زلفې رو رو خوروه
شنه بنګړي دې شرنګوه
شي دنیا دې لېونۍ
خانده شونډې سرې کوه

کړي رنګونه تماشې
ښائیستونه تماشې
ستا د مخ د پسرلو
کړي ګلونه تماشې
ځان په چل چل جوړوه
پردي زړونه تختوه

شي دنیا دې لېونۍ
خانده شونډې سرې کوه
د لمبې غوندې ځوانې
نظرونه طوفانې
په ښائیست کې لېونۍ
هډو نه لرې ثانې
تندرونه وروه
ارمانونه قتلوه

شي دنیا دې لېونۍ
خانده شونډې سرې کوه

ټول جهان که لېونے
زوړ او ځوان که لېونے
پروا مه لره د چا

هر ارمان که لېونۍ
هره خوښه دې کوه
خو "لایق" مه هېروه

شي دنیا دې لېونۍ
خانده شونډې سرې کوه

## قیامتونه

خواږه خواږه کتل کوې خندا کې دې اثر دے
جادو دے که منتر دے جاودو دے که منتر دے

په تلو کې مکېزونه، خندا کې قیامتونه
کتو کې خمارونه
دا ځکه ستا په لوري د هر چا نظر نظر دے
جادو دے که منتر دے

نه غم وي نه فکرونه، کووم دا ارمانونه
تل ستا وي دیدنونه
ما ستا په نامه کړے د ژوند هر یو مازیګر دے
جادو دے که منتر دے

زه مینه یم وفا یم، دا ستا د زړه درزا یم
"لایق" دې په رښتیا یم
سینه مې ستا په یاد کې د رنګونو سمندر دے
جادو دے که منتر دے

# خوښه

څوك به "كابل" او "پېښور" يادوي
څوك به ښائيست د "اشنغر" يادوي
د چا "خيبر" د چا "تيراه" خوښه ده
زما دا ټوله "پښتونخوا" خوښه ده

دغه ساده باده سپېڅلي كلي
دا د وختونو نازولې كلي
د تصور نه بلا ښكلي كلي
دلته مې لور په لور خندا خوښه ده
زما دا ټوله "پښتونخوا" خوښه ده

دا د خودسره "ازمرو" وطن دے
د حياناكو "ښاپېرو" وطن دے
د ابشارونو سردرو وطن دے
زما ئې حُسن هم ښكلا خوښه ده
زما دا ټوله "پښتونخوا" خوښه ده

دغه ميلې، دا اتڼونه زما
دغه حجرې، دا ګودرونه زما
دغه جرګې، دا محفلونه زما
چې مې رښتيا چې مې رښتيا خوښه ده
زما دا ټوله "پښتونخوا" خوښه ده

دلته كې امن وروروليي دې وي تل
دلته سكون هم خوشحالي دې وي تل
"لايقه" لور په لور سپرلي دې وي تل

دغه مې سوال دا مې دا مې دُعا خوښه ده
زما دا ټوله پښتونخو خوښه ده

## بې وسي

هر وخت بهانې کوي
خون د يارانې کوي
بيا بيا ئې وژلے يم

څه په دروغجنې اوربدلے يم

وائي چې زه ستا به شم
را به شمه را به شم
تا سره پخلا به شم
ډېر ئې کړولے يم
بيا بيا ئې وژلے يم

څه په دروغجنې اوربدلے يم

سترے انتظار کړمه
مينې خوار و زار کړمه
غم په زړه بېمار کړمه
هرڅه نه وتلے يم
بيا بيا ئې وژلے يم

څه په دروغجنې اوربدلے يم

ښکلې د هېڅ چا نه دي
ستا نه دي، زما نه دي
پوهه په وفا نه دي
ډېر ئې سوزولې يم
بيا بيا ئې وژلې يم

څه په دروغجنې اوړېدلې يم

هر وختې يادېږې مې
کله نه هېرېږي مې
سترګو کې غړېږي مې
مينې زورولې يم
بيا بيا يې وژلې يم

څه په دروغجنې اوړېدلې يم

بيا بيا چې قتلېږمه
مرمه نه رغېږمه
زه "لايق" سوزېږمه
ډېر ئې ژړولې يم
بيا بيا ئې وژلې يم

څه په دروغجنې اوړېدلې يم

# بې پروا

لکه زرکه په رو رو، قدم اخلې په نخرو
یو ځواني دې سرې لمبې، بل دې خوی د ښاپېرو

چې کوم خوا اوکړې نظر، خلق واړوې په شر
شاعران کړې لېوني، عاشقان په مېرو سر
څوك لګیا کړې په دعا، څوك اخته کړې په ښېرو
یو ځواني دې سرې لمبې، بل دې خوی د ښاپېرو

ستا دے هر انداز بدل، رباعي ئې هم غزل
محفلونه کړي وږمې، ستا ګلاب ګلاب نظر
بلا ډېر دي بندیوان، ستا د زلفو منګرو
یو ځواني دې سرې لمبې، بل دې خوی د ښاپېرو

ستا ځواني ده بې پروا، پرو انه لري د چا
چې "لایق" کړې کله یاد په شر واړه وئے دنیا
ده مستي دې د کابل، نزاکت د پېښورو
یو ځواني دې سرې لمبې، بل دې خوی د ښاپېرو

# انتظار

ما په اوربل کې قطار کړي دي ګلونه
لالیه بیا دیدن ته راشه
د بنګړو ډك مې دي راوړي مړوندونه
لالیه بیا دیدن ته راشه

ستا د راتلو په انتظار کې
بدن مې سوځي په انګار کې
په غونډه زنه مې وهلي شنه خالونه
لالیه بیا دیدن ته راشه

یم وارخطا زړه مې درزېږي
تا رانه غواړي نه صبرېږي
راشه چې ختم شي مې واړه ګُمانونه
لالیه بیا دیدن ته راشه

داسې نه مینه مو رسوا شي
په مونږه پویه دا دنیا شي
پاتې نیمګړي زما نشي ارمانونه
لالیه بیا دیدن ته راشه

ته مې "لایق" د محبت یې
زما وفا زما غیرت یې
ما دې خوړلي ستا د مینې سوګندونه
لالیه بیا دیدن ته راشه

# مننه

زه د خپل سفر په دې پړاؤ کښې د کواټ د سپېڅلې او سوچه خاورې د هاغه ټولو ملګرو شاعرانو مننه کوم، چا چې په هره ادبي غونډه کې ماته په درنه سترګه اوکتل. چا چې زما د لېوني زړه ټولې ناقراره جذبې نورې هم ناقراره کړې او زه ئې ددې جوګه کړم، چې په لږ وخت کښې ډېر څه اوليکم.

د ښاغلي سعادت خان ساغر خټک ،

ښاغلي مختيار يوسفزي او ورور بصير ستوري هم مننه کوم، چې د لېونو سندرو د لېونو لفظونو په صحيح کولو (پروف) کښې ئې زما ملاتړ اوکړو.

د ښاغلي حاجي ګلزار خان اورکزي ، ښاغلي فيروز اپريدي ، ښاغلي وزير بادشاه جانان هم مننه، چې زما د مينې ټپه ئې د قطر په ښائستونو کښې زمزمه کړه.

د ګران او محترم ملګري سيد سردار حسين ايډوکيټ ډېره مننه، چې زما د "لېونتوب" اظهار د خپل زړه آواز ګڼي.

د زلمي سندرغاړي همايون خان مننه، چې ماته ئې دسندرو د چاپ مشوره راکړه.

او ددې ټولو ترڅنګه د خپلې ګرانې او درنې مور " پښتو " مننه، چې زما او زما د مينه والو ترمېنځه ئې د "لېونتوب" جذبو ته وده ورکړې ده. دعا کوم، چې الله تعالى دې مونږ ټولو ته د "پښتو" د نور خدمت توفيق راکړي. امين

لايق زاده لايق
کواټ

## ګرانو مينه والو!



زمـا بنيـادي تعلـق د صـوابۍ ضـلعې د (زېـدې) کلـي سره دی، خو نـن سبا په دوبۍ کې ژوند کـوم، ځکـه نـو چـې تراوسـه پـورې دغلتـه ځـومره پښتانـه فنکـاران راغلـي دي، مـا ورتـه تـر خپلـه وسـه پـورې پـوره پـوره عـزت او احتـرام ورکـړے دے. په پـردي وطـن کې زمونږ ليده کاته ورو ورو په مينه بدل شوي دي.

د فـن او فنکـار سـره دې ميـنې زه د لايـق زاده لايـق سـره هـم اشـنا کـړم، ځـوك چـې د شـعر پـه ژبـه د زړه خبـرې کـئ. "لېونـۍ سـندرې" د ملګـرې لايـق زاده لايـق د نـاقراره جـذبو هاغـه اظهـار دی، کـومې چـې کلـه هـم د فنکـارانو په خوله راغلي دي، نو هر چا خوښې کړي دي.

د "لېونـو سـندرو" پـه چـاپ کـې د خـپلې ميـنې د ګـډون پـه ذريعـه مـا د شـعر او فـن پـه باريـك تعلق کـې د ځـان ځـاى کولـو يـو شعوري کوشش کـړې دی. زه باور لرم چې زما دغه مينه به تاسو نوره درنه کئ.

زه د لېونـو سـندرو پـه تـړون د هاغـه ټولـو فنکـارانو لکـه ښـاغلي هـارون بادشـاه، ښـاغلي زيـك افريـدي، ښـاغلي بختيـار ختـك، ښـاغلي همـايون خـان، ښـاغلي شـوکت محمـود، ښـاغلي مسـعود اختـر، ښـاغلي عرفـان خـان او نـورو ډېـرو نـه عـلاوه د سټيج د ملګـرو فنکـارانو پـه خصوصـي توګـه د ښـاغلي ناصـر خـان او د زلمـي ډايريکټـر ښـاغلي فهميـد خـان ډېـر مشـکور يـم، چـې پـه مـا يـې همېشـه خپلـه مينـه پېـرزو کـړې ده. پـه دې بـاور چـې دوی بـه د "لېونـۍ سـندرو" د نورو خورولو په ذريعه د مينې دا رشتې نورې هم درنې کړي.

**د پښتون قام د نور ځلنده او روښانه سباوون په اميد**

**ستاسو**

## شيـر عـلي خـان

**کراؤن انټرنېشنل مارکېټنګ اينډ بزنس کنسلټنټس ـ دوبۍ**

Designed By :
Syedjee & Company Kohat. 03 00 915 34 54
*Printed by: Zia Sons Printers Peshawar*
*Ph: 091-2580176*